صحیح مستند مسنون

# ذکرونه

او

# دعاګانې

تألیف

الشيخ أبويزيد عبدالقاهر خراساني حفظه الله

# صحيح مستند مسنون

# ذكرونه

# او

# دعاګاني

تألیف:

الشيخ أبو يزيد عبدالقاهر خراساني حفظه الله

بسم الله الرحمن الرحيم

# د کتاب پېژندنه

**د کتاب نوم:** صحیح مستند مسنون ذکرونه او دعاګانې

**د مؤلف نوم:** فضیلة الشیخ أبویزید عبدالقاهر خراساني حفظه الله

**د چاپ ګڼه:** لمړۍ ګڼه

**خپرونکي:** ابطال الاسلام خپرندویه اداره

**لاسته راوړلو ځای:** http://www.abtal.webs.com

بسم الله الرحمن الرحيم

إن الحمد لله نحمده و نستعينه و نعوذ بالله من شرور أنفسنا و من سيئات أعمالنا ، من يهده الله فلا مضل له و من يضلل فلا هادي له. و أشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له و أشهد أن محمدا عبده و رسوله. ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٠٢﴾ ﴾ آل عمران: ١٠٢ ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَآءً ۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِى تَسَآءَلُونَ بِهِۦ وَٱلْأَرْحَامَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ﴿١﴾ ﴾ النساء: ١ ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَقُولُواْ قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٧٠﴾ يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَـٰلَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧١﴾ ﴾ الأحزاب: ٧٠ — ٧١

أما بعد!

فإن أصدق الحديث كتاب الله و أحسن الهدي هدي محمد ﷺ و شر الأمور محدثاتها و كل محدثة بدعة و كل بدعة ضلالة و كل ضلالة في النار.

**وبعد**: د فتنو په دې زمانه کې نن مسلمانان په مختلفو مصيبتونو او ابتلاګانو اخته دی چې د ټولو رجع جهل ته او د دين نه غفلت او اعراض ته کيږي. طاغوتي حکومتونه په مسلمانانو مسلط دي، قوانين يې د کفر پرې نافذ کړي، د يهودو او نصاراؤ غلامان حکومتونه چې نن يې په مسلمانانو کوم ظلمونه وکړل چې قلم يې د ليکلو نه عاجز دی. مستحبات او سنن خو پرېږده چې فرائض نن يو مسلمان ته ياد نه دي. عقيده نه پيژني خو هر کله چې الحمد لله علماؤ د عقيدې دپاره لساني او قلمي او سيفي خدمت وکړو

او الحمد لله اوس بعضې خلک په عقیده پوه شول او طاغوت یې و پېژنده. نو سره د دېنه مونږ نه بعضې ملګرو دا خواست وکړو چې د اذکارو یو صحیح او مستند کتاب په پښتو کې د مجاهدینو، طالبانو او عامو مسلمانانو لره ضروري دی چې ولیکل شي. نو ما اراده وکړه چې یو کتاب په دې مسئله باید ولیکل شی ترڅو خلک د هغه اذکارو او دعاګانو نه ځان وساتي چې خود ساخته وي او یا یې بنیاد په موضوعي او ضعیف روایاتو دي. لهذا مونږ په دې کتاب کې د موضوعي او ضعیف روایاتو نه ځان علی قدر الطاقة ساتلی دی، خو د دېنه مخکې چې د کتاب مقصد ته راشو بعضې ضروري مقدمات او تنبیهات ذکر کول ضروري دي:

**اوله مقدمه**: په ضعیف حدیث عمل کول په فضائلو کې صحیح نه دی: په علماؤ او عوامو کې دا مشهوره ده چې په فضائلو کې باید په ضعیف حدیث هم عمل کول په کار دي او بعضې علماء هم په دې کې تساهل کوي لکه امام نووي و غیره. لکه چې امام نووي وايي: محدثین او فقهاء علماء وايي: چې جائز او مستحب دی عمل کول په فضائل د ترغیب او ترهیب کې په ضعیف حدیث باندې تر څو چې موضوعي نه وي او هر چې احکام دي لکه حلال او حرام، بیع، نکاح، طلاق او نور داسې نو بیا به په دې کې عمل نه شي کیدی مګر په صحیح او یا حسن حدیث باندې. (الاذکار للنووي صـ٥).

**تنبیه**: دغه قاعده چې په ضعیف حدیث عمل کول مطلقا په فضائل اعمالو کې صحیح نه ده بلکه دا مقیده ده. یو دا چې ضعف یې شدید نه وي. لکه امام ابن العربي مالکي وايي: إن الحديث الضعيف لا يعمل به مطلقا.
(صحیح الترغیب جـ١صـ٤٨).

يعنې په ضعيف حديث به په فضائل اعمالو کې مطلقا عمل نه شي کېدی. لکن امام ابن حجر عسقلاني بيا وايې چې: په ضعيف حديث به عمل کيدی شي په درې شرطونو:

۱- **شرط**: چې ضعف به يې ډير سخت نه وي چې روايت کې به کذاب واضع او ډير غلطۍ والا نه وي.

۲- **شرط**: دغه حديث به د يو اصل عام لاندې وي او که يو اصل ورلره په شرع کې نه و نو بيا به پرې عمل نه شي کيدی.

۳- **شرط**: په وخت د عمل کې به د ثبوت عقيده نه لري ځکه چې بيا رسول الله ﷺ ته د هغه څه نسبت وشو چې هغه نه يې ويلي.

**زه وايم**: حافظ ابن حجر رحمه الله په تبيين العجب ص۹کې وايې چې: په فضائل اعمالو کې په ضعيف حديث باندې عمل په کار نه دی ځکه فضائل او احکام دواړه شرع ده او دا قوي مذهب دی. ځکه عبادت بايد په يقين سره وشي او چې ته په کې شک کوې نو بيا دغه عبادت عبادت نه دی. د دې وجې نه علامه الدکتور صبحي الصالح وايې: دغه شرطونه چې علماء يې ذکر کوي په ضعيف حديث د عمل کولو دا نه شو منلی ځکه چې زمونږ په شريعت کې صحيح او حسن احاديث هم په احکامو او هم په فضائلو کې وجود لري نو بيا ضعيف احاديثو ته څه حاجت دی. (وګوره علوم الحديث ص۲۱۲).

**امام شاطبي وايي**: والأحاديث الضعيفة لا يغلب على الظن أن النبي ﷺ قالها فلا يمكن أن يسند إليها حكم فما ظنك بالأحاديث المعروفة بالكذب (الإعتصام جـ١ صـ٢٢٩).

يعني ضعيف احاديث په هغې دا غالب ګمان نه شي کيدي چې دا به رسول الله ﷺ ويلي وي نو ممکن نه ده چې هغې ته د يو حکم نسبت وشي (چې حکم شرعي که فضائل وي او که احکام) هغه پرې ثابت شي نو بيا ستا څه ګمان دی د دروغو احاديثو باندې؟

## د محققينو علماؤ فيصله

**الشيخ الألباني وايي**: مونږ تساهل نه وينو په هيڅ شي د يو روايت د ضعيف احاديثو نه بغير د بيان د ضعف د هغې نه او زمونږ په نزد فرق نشته په مينځ د احکامو او احاديثو د فضائلو کې،ځکه دواړه شرعي حکمونه دي. بيا وايي: استحباب حکم شرعي دی چې دا نه ثابتيږي مګر په ثابت نص باندې په اتفاق سره. نو څنګه به بيا په ضعيف حديث سره دغه حکم ثابت شي؟ بيا يې د شيخ الاسلام کلام ذکر کړی دی چې وايي:

إنه لا يجوز إثبات حكم شرعي مستحبا كان أو غيره بالحديث الضعيف هو الحق الذي لا يجوز غيره عندنا و ينتج من ذلك عدم التفريق بين أحاديث الفضائل و أحاديث الأحكام و في عدم التساهل في رواتها إلا بعد التأكد من ثبوتها أو مع بيان عدم ثبوتها. و ذلك مذهب كثير من العلماء المحققين كالحافظ ابن حجر و الإمام شوكاني والعلامة الصديق حسن خان و الشيخ أحمد شاكر و غيرهم. (صحيح الترغيب و تمام المنة).

**ترجمه**: جائز نه دی د شرعي حکم ثبوت مستحب وي او که نور په ضعیف حدیث باندې او دا حق مسلک دی زمونږ په نزد او د دې نه دا نتیجه را اوځي چې هېڅ فرق نشته په مینځ د فضائلو او احکامو کې چې په دواړو کې به تساهل نه شي کېدی په روایت کې او یا به د هغې ثبوت هم بیانوي او د ا مذهب دی د ډیرو محققینو علماؤ لکه ابن حجر، شوکاني، صدیق حسن خان، الشیخ احمد شاکر و غیره.

**دوهمه مقدمه: د ذکر اودعاء آداب**:

په ذاکر او داعي لازم دي چې په هر وخت کې او هر حال کې الله تعالی ته پناه حاصله کړي او د دعاء او ذکر نه باید هېڅ شی دی منع نه کړي. ځکه الله تعالی مونږ نه یو مقید کړي په یو وخت کې د وختونو نه په دعاء او ذکر کولو سره او نه په یو حال کې بلکه الله تعالی فرمایي: ﴿أُجِيبُ دَعۡوَةَ ٱلدَّاعِ إِذَا دَعَانِۖ﴾ البقرة: ١٨٦

**ترجمه**: قبلوم دعاء د دعاء کوونکي کله چې مانه وغواړي.

او بل ځای کې فرمایي: ﴿ٱدۡعُونِيٓ أَسۡتَجِبۡ لَكُمۡۚ﴾ غافر: ٦٠

**ترجمه**: مانه وغواړئ زه ستاسو دعاء قبلوم.

او دې دواړو آیتونو کې کوم قید نشته. مګر که شارع کوم ځای منع کړی وي نو بیا په مقید وي ذاکر کله الله په زړه کې یادوي کله یې په مجلس کې یادوي. حدیث کې راځي: رسول الله ﷺ فرمایي چې الله تعالی فرمایي: فإن ذکرني في نفسه ذکرته في نفسي و إن ذکرني في ملاء ذکرته في ملاء خیر منه (مسلم٢٦٧٥).

**ترجمه**: كه بنده زه په زړه كې ياد كړم نو زه به يې هم په زړه كې ياد كړم او كه په يو مجلس د خلكو كې يې زه ياد كړم نو دى به زه په هغه مجلس كې ياد كړم چې غوره به وي د هغه نه.
او دا يقيني خبره ده چې ذكر دعاء ده خو په داعي او ذاكر لاندې آداب مراعات كول لازم دي اګر كه بعضې ملايانو آداب د ذكر ليكلي دي خو اكثر بې سنده دي اګر كه نوم يې هم مستند وي. نو اوس هغه آداب واوره چې د دعاء او ذكر د قبليدلو دپاره شريعت كې ذكر دي.

### ۱- ادب: ځان د حلال خوراك او څښاك او حرم لباس نه ساتل دي.

ځكه حرام خوراك او لباس سبب دى د نه قبليدلو د دعا او ذكر. دليل پرې حديث د رسول الله ﷺ دى چې ابو هريره ؓ فرمايي چې رسول الله ﷺ يو سړى ذكر كړو بيا وايې:
ثم ذكر الرجل يطيل السفر أشعث أغبر يمد يديه إلى السماء يارب و مطعمه حرام و مشربه حرام و ملبسه حرام و غذي بالحرام فأنى يستجاب له.
(مسلم١٠١٥ والترمذي٢٩٩٢ أحمدج٢ ص٣٢٨ والدرامي ٢٧٢٠).

**ترجمه**: بيا يې هغه سړى ذكر كړو چې اوږد سفر وكړي ببر سر او ګردجن شوى وي د سفر د وجې نه او لاسونه يې اسمان ته اوچت كړي وي او وايې ياربه ياربه خو خوراك او څكاك او لباس يې حرام وي او په حرامو غټ شوى وي نو څنګه به يې دعاء قبوله شي؟

۲- **ادب**: **اخلاص الله تعالى لره** او اخلاص د هغه لوى آدابو څخه دى چې ذاكر او داعي ته ډير سخت ضرور او لازم دى. لكه چې الله تعالى

فرمايي: فادعوا الله مخلصين له الدين. مؤمن ۱۴ يعنې غواړئ د الله تعالى نه چې اخلاص كوونكي ياستئ هغه لره د دين. او سورت البينه۵ كې هم د اخلاص اهميت بيان شويدى.

۳- **ادب**: **التوسل**: الله تعالى لره په نيكو اعمالو سره. ځكه چې دا يوه ښه وسيله ده د ذكر او دعاء قبليدو ته په دې باندې دليل هغه حديث د درې كسانو دى چې په غار كې حصار شوي و او غار پرې بند شوى و چې هغوى درې واړو خپل نيک نيک اعمال وسيله كړل او هر كله چې هغوى هغه خپل نيک نيک اعمال وسيله كړل نو الله تعالى يې دعاء قبوله كړه او هغه كاڼى چې د غار خوله يې بنده كړې وه لرې شو او د غار نه روغ او سالم ووتل.
(صحيح البخاري۵۲۲۱-۲۳۳۳ و مسلم۲۷۴۳).

۴- **ادب**: **اودس كول**: ذاكر او داعي بايد په اودس كې ذكر او دعاء وكړي. د دې دليل حديث د مهاجربن قنفذ ﵁ دى چې دى په رسول الله ﷺ تېرېده او رسول الله ﷺ بول كول او مهاجر بن قنفذ ﵁ پرې سلام واچولو خو هغه جواب ورنه كړو تر دې چې هغه اودس وكړو بيا يې مهاجر بن قنفذ ﵁ ته عذر وكړو چې: " إني كرهت أن أذكر الله إلا على طهر أو قال على طهارة ".
(ابوداود -۱۷- احمدج٤ ص٣٨٥ والحاكم ج١ ص١٦٧ و صححه و وافقه الذهبي و للحديث اصل رواه مسلم في صحيحه. انظر الارواء ج١ ص٩٢).

او دې كې شک نشته چې دعاء هم ذكر دى بلكه دعاء پخپله هم عبادت دى.
(ترمذي ۳۲۴۴ ، ابن ماجة ۳۸۲۸ ، احمد ج٤ ص٢٦٧ و صحيح الأدب المفرد ٥٥٠ و صحيح الجامع ٣٤٠٧).

**۵- ادب**: **استقبال القبلة**: دا هم د ذکر او دعاء د آدابو څخه دی چې مخ قبلې طرف ته کړې ځکه عابدین او داعین په وخت د دعاء او ذکر کې مخ قبلې ته کوي. لکه حدیث د ابو هریره ﷺ کې راځي:

**رسول الله ﷺ فرمایي**: " إن لكل شيء سيدا و إن سيد المجالس قبالة **القبلة** ". (الطبراني في الأوسط جـ٣ صـ١٨٢. قال السخاوي في المقاصد الحسنة صـ١٤٢ و كذلك المنذري في الترغيب رقم ٤٥١٨ وقال: إسناده حسن).

**ترجمه**: د هر شي دپاره يو غوره والی وي او غوره والی د مجالسو مخ كول قبلې طرفته دی.

او رسول الله ﷺ د استسقاء په دعاء کې مخ په قبله کړی و. (صحیح البخاري ( ) و صحيح الادب المفرد٤٧٦).

او د بدر په ورځ يې په دعاء کې مخ قبلې طرفته کړی و. (مسلم)

۶- **ادب**: **لاسونه غوړول او اوچتول** د اوږو پورې په دعاء کې. ځکه چې رسول الله ﷺ فرمايي:" إن الله حيي كريم يستحيي إذا رفع الرجل إليه يديه أن يردهما صفرا **خائبتين** ". (صحيح: أخرجه الترمذي ٣٥٥٦ و أحمد جـ٥ صـ٤٣٨ ، أنظر صحيح الجامع ١٧٥٣ و صحيح ابن ماجة ٣٨٦٥).

**ترجمه**: يقينا الله تعالى حياناک دی، سخي ذات دی، حياء کوي د دېنه چې يو سړی هغه ته لاسونه اوچت کړي او بيا يې هغه خالي واپس کړي (يعنې دعاء يې قبوله نه کړي).

**او بل حديث کې راځي**: إذا سألتم الله فاسألوه ببطون أكفكم و لا تسألوه **بظهورها**. (صحيح أخرجه ابو داود ١٤٨٦ و انظر السلسلة الصحيحة ٥٩٥).

**ترجمه**: يعنې کله چې تاسو د الله تعالی نه سوال کوئ نو سوال ترېنه کوئ د دوارو ورغوو په يو ځای کېدو سره او سوال د هغه نه مه کوئ په پړ مخ ورغوو سره.

**فائده**: عام دعاګانو کې لاسونه دواړه اوچتولو او د ورغوو ځانته نيول سنت دي البته د استسقاء په دعاء کې بيا لاسونه پړ مخ نيول سنت دي.

**فائده**: لاسونه په مخ راښکل د دعاء نه وروسته ثابت نه دي. **العزبن عبدالسلام** وايي: **و لا يمسح وجهه بيديه عقب الدعاء إلا جاهل**. اهـ. (فتاوی العز بن عبدالسلام صـ٤٧ و مجموع الفتاوی جـ٢٢ صـ٥١٩).

٧- **ادب**: د الله تعالی نه په اسماء حسنی سره سوال کول. ځکه الله تعالی فرمايي: ﴿وَلِلَّهِ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰ فَٱدۡعُوهُ بِهَا﴾ الأعراف: ١٨٠

**ترجمه**: الله تعالی لره ښائسته نومونه دي په هغې سره د الله تعالی نه وغواړئ.

٨- **ادب**: هغه اذکار او دعاګاني به کوې چې د رسول الله ﷺ نه په صحيح احاديثو کې ثابت وي چې په ضعيف يا موضوعي احاديثو کې هغه نه وي.

٩- **ادب**: اول به په دعاء کې د ځان نه شروع کوې بيا به د نورو دپاره دعاء غواړې. لکه حديث د ابن عمر رضي الله عنه کې راځي: **كان رسول الله ﷺ إذا ذكر أحدا فدعا له بدأ بنفسه**. (صحيح الجامع ٤٧٢٣ و صحيح الترمذي ٢٦٩٦ والمشكاة ٢٢٥٨ و رواه ابن حبان والحاكم في المستدرك).

**ترجمه**: يعني رسول الله ﷺ به و چې کله به يې چې څوک يادولو پس دعاء به يې هغه ته کوله نو اول به يې ځان ته کوله.

**تنبيه**: بعضې وايې چې کله امام وي څوک نو ځان به نه خاص کوي په دعاء کې او يو حديث استدلال کې پېش کوي چې: لا يؤم الرجل قوما فيخص نفسه بالدعاء دونهم فإن فعل فقد خانهم. (أبوداود ۹۰ والترمذي **۳۵۴** وأحمد ج**۵** صـ۲۸۰).

**ترجمه**: يعني نه کوي يو سړی کوم قوم ته امامت او بيا دی ځان په دعاء سره خاص کوي پرته د قوم، که دا کار يې وکړو نو د دې مقتديانو سره يې خيانت وکړو.
خو حديث ضعيف دی سند کې يې يزيد بن شريح الحفري دی چې دی ضعيف دی.

۱۰- **ادب**: ذکر او دعاء به ښه کوشش او مينه او رغبت سره کوي لکه حديث د ابو هريره کې راځي رسول الله ﷺ فرمايي: کله چې يو د تاسو نه د الله تعالى نه سوال کوئ نو داسې دې نه وايې چې يا الله ماته بخښنه وکړې که دې خوښه شي او رزق ماته راکړې که دې خوښه شي: و ليعزم مسألته، إنه يفعل ما يشاء و لا مکره له. (صحيح البخاري **۲۳۳۹- ۷۴۷۷** و مسلم **۲۲۷۹**).

**ترجمه**: يعني په کلکه او يقين سره دې د الله تعالى نه سوال کوي يقينا هغه کوي هغه څه چې خوښه يې شي او هغه باندې څوک زورکوونکی نشته.

۱۱- **ادب**: د دعاء او ذکر وخت کې به د زړه حضور وي او امید به يې ښه وي. حديث د ابو هريره ﷺ کې راځي: رسول الله ﷺ فرمايي: أدعوا الله و أنتم موقنون بالإجابة. واعلموا أن الله لا يستجيب دعاء من قلب غافل لاه. (صحيح الترمذي **۳۵۴۵** و الحاكم جـ۱ صـ**۴۹۳** و صحيح الجامع **۲۴۵** و السلسلة الصحيحة **۵۹۲**).

**ترجمه**: غواړئ د الله تعالى نه په داسې حال کې چې تاسو يقين کوونکي يئ په قبليدلو د دغه دعاء سره او پوه شئ يقينا الله تعالى د هغه زړه نه دعاء نه قبلوي چې هغه غافل او بې پرواه وي.

۱۲- دعاء به تکراروی. ځکه چې حديث کې راځي: كان إذا دعا دعا ثلاثا و إذا سأل سأل ثلاثا (جزء من حديث طويل اخرجه مسلم **۱۷۹۴**).

**۱۳- ادب**: د ګناه دعاء به نه کوي او نه هغه دعاګانې چې پکې د خپلولۍ د قطع دعاګانې وي. لکه حديث د ابو هريره ﷺ کې راځي: رسول الله ﷺ فرمايي: لا يزال يستجاب للعبد مالم يدع بإثمه او قطيعة رحمه. (مسلم **۲۷۳۵**).

**ترجمه**: همېشه د بنده دعاء قبليدی شي تر څو چې يې په ګناه او يا د خپلولۍ په قطع دعاء نه وي کړي.

۱۴- **ادب**: سوال به صرف د الله تعالى څخه کوي په ټولو حاجاتو کې: ځکه چې رسول الله ﷺ فرمايي: و إذا سألت فاسأل الله و إذا استعنت فاستعن بالله. (الترمذي **۲۵۱۸** و احمد جـ۱ صـ**۲۹۳** و ابن السني في عمل اليوم و الليلة **۴۲۷** عن ابن عباس ﷺ).

**ترجمه**: يعنې چې كله سوال كوې نو د الله تعالى نه يې كوه او چې كله مدد غواړې نو په الله تعالى سره مدد غواړه.

۱۵- **ادب**: دعاء كوونكى او اوريدونكى به آمين وايې. ځكه چې آمين ويل طلب د قبليدو د دعاء دى د رب العالمين نه او دا تاكيد او تكرار د دعاء دى. لكه حديث د أم سلمة ﵂ كې راځي: أن رسول الله ﷺ دعا بدعاء طويل و أمن في تفاصيله. (رواه الحاكم في المستدرك جـ۱ صـ**۵۲۰** و قال صحيح الاسناد و وافقه الذهبي).

**ترجمه**: يقينا رسول الله ﷺ يو ورځ ډيره اوږده دعاء وكړه او آمين به يې ويلو د هغې په اوږدوالي كې.

۱۶- **ادب**: په دعاء كې به جلتي نه كوې چې ګويا زما دعاء قبوله نه شوه. ځكه چې رسول الله ﷺ فرمايې: يستجاب لاحدكم ما لم يعجل. يقول دعوت فلم يستجب لي. (صحيح البخاري **۲۳۴۰** و مسلم **۲۷۳۵**).

**ترجمه**: قبليدلى شي دعاء يو د ستاسو نه ترڅو چې جلتي و نه كړي او هغه دا چې ما دعاء وكړه او قبوله نه شوه.

۱۷- **ادب**: دعاء به ډيره كوي چې قبوله شي. ځكه چې رسول الله ﷺ فرمايې: إذا سأل أحدكم فليكثر فإنما يسأل ربه. (صحيح. رواه ابن **۲۴۰۳** عن عائشة. أنظر السلسلة الصحيحة **۱۳۲۵**).
يعنې كله چې يو د تاسو نه سوال كوي نو ډير يې كوئ ځكه دا د الله تعالى نه سوال دى. (نو بايد چې ډير وشي).

او حديث د ابو هريره ﷺ كې راځي: من سره أن يستجيب الله له عن الشدائد والكرب فليكثر الدعاء في الرخاء. (الترمذي ٢٢٩٢ والحاكم جـ١ صـ٥٤٤ و هو حديث حسن. أنظر السلسلة الصحيحة ٥٩٣).

**ترجمه**: څوک چې خوشحالوي دا خبره چې د ده دعاء دې قبوله شي په سختو او مشكلو حالاتو كې نو په خوشحالۍ كې دې دعاګانې ډيرې كوي.

## دعاء تقدير بدلوي

حديث كې راځي: لا يرد القضاء إلا الدعاء و لا يزيد في العمر إلا البر. (الترمذي ٢١٣٩ والحاكم وهو حديث حسن أنظر السلسلة الصحيحة ١٥٤).

**ترجمه**: يعنې نه رد كوي تقدير مګر دعاء او عمر نه زياتوي مګر نيكي كول.

دا حديث صريح دليل دى چې الله تعالى په دعاء سره هغه تقدير بدلوي كوم چې د بنده په هكله ليكلى وي.

خو دا تقدير بيا معلق دى. هر چې تقدير مبرم دى نو هغه نه متغير كيږي. (تحفة الأحوذي جـ٢ صـ١٧٤٥).

او د دې خبرې تائيد دا قول د الله تعالى هم كوي: قَالَ تَعَالَىٰ: أَعُوذُ بِٱللَّهِ مِنَ ٱلشَّيۡطَٰنِ ٱلرَّجِيمِ ﴿يَمۡحُواْ ٱللَّهُ مَا يَشَآءُ وَيُثۡبِتُۖ وَعِندَهُۥٓ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ ﴿٣٩﴾﴾ الرعد: ٣٩

**ترجمه**: محوه كوي الله تعالى هغه څه چې وغواړي او پريږدي او د هغه څخه اصل د كتاب دى.

خلاصه: دا چې دعاء هم د الله تعالى د تقدير څخه ده. چې كله الله تعالى په يو بنده د يو شي مقيده فيصله وكړي نو دعاء هغه مقيده فيصله رد كړي او دا هم تقدير دى.

## كومې دعاګانې نه رد كيږي؟

١- **ابوهريره ﷺ وايي**: رسول الله ﷺ فرمايي: ثلاث دعوات مستجابات لاشك فيهن: دعوة المظلوم و دعوة المسافر و دعوة الوالد على ولده. (أبوداؤد **١٥٣٢** والترمذي **٢٧٤١** و أحمد جـ**٢** صـ**٤٣٤** و السلسلة الصحيحة **٥٩٢** و ابن ماجة **٣٨٦٢** و صحيح الأدب **٣٧٢**).

**ترجمه**: درې دعاګانې دي چې قبولې شويدي چې شک پکې نشته: د مظلوم دعاء، د مسافر دعاء او د پلار دعاء د ځوى دپاره.

٢- **او په بل روايت د ابوهريره ﷺ كې**: دعوة الصائم: يعنې د روژه دار دعاء هم قبوله ده. (السنن الكبرى للبيهقي جـ٣ صـ٣٤٥ والسلسلة ١٧٩٧ و صحيح الجامع ٣٠٣٠).

٣- **رسول الله ﷺ فرمايي**: " من دعا لأخيه بظهر الغيب قال الملك المؤكل به آمين ولك بمثل. (مسلم ٢٧٣٢ و أبوداؤد عن أبي الدرداء ﷺ).

**ترجمه**: چاچې د ورور دپاره په غيبو كې دعاء وكړه نو هغه ملائک چې پرې مقرر ده آمين وايې او وايې ستا دپاره په مثل د دغه دعا اجر دى.

٤- **عبدالله ابن عمرو ﷺ وايي**: يو سړي رسول الله ﷺ ته وويل: اى رسول الله! يقينا مؤذنين په مونږ فضيلت والا دي نو رسول الله ﷺ وويل: "

**قل كما يقولون، فإذا انتهيت فسل تعطه** ". (أبوداؤد ٥٢٤ حسن وابن حبان ٢٩٥ و أحمد جـ٢ صـ١٧٢ و صحيح الترغيب ٢٤٩ و صحيح الجامع ٤٤٠٣).

**ترجمه**: يعني وايه لكه چې مؤذنين كوم اذان وايې كله چې دې اذان خلاص كړو نو سوال كوه دربه كړى شي.

## كومو وختونو كې دعاګانې قبليږي؟

١- **ليلة القدر**: ابوهريره ﷺ: رسول الله ﷺ فرمايي: **من قام ليلة القدر إيمانا واحتسابا غفرله ما تقدم من ذنبه**. (صحيح البخاري ٢٠٠٩ و مسلم ٧٥٩).

**ترجمه**: څوک چې الله تعالى ته د ايمان او ثواب په نيت د شب قدر په شپه ودريده نو مخكني ګناهونه به يې و بخښل شي.

٢- **يوم عرفه**: رسول الله ﷺ فرمايي: **خير الدعاء يوم عرفة و خير ما قلت أنا والنبيون من قبلي لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك و له الحمد و هو على كل شيء قدير**. (الترمذي ٣٥٧٩ و المشكاة ٢٥٩٨ و سلسلة الأحاديث الصحيحة ١٥٠٣).

**ترجمه**: بهترينه دعاء د عرفې د ورځې دعاء ده او بهترينه وينا چې ما ويلې او زما نه مخكنو انبياء عليهم السلام ويلې ده هغه **لا إله إلا الله وحده لا شريک** ده.

٣- **شهر رمضان**: مخكې حديث د ابو هريره ﷺ ذكر شو چې درې دعاګانې قبولې دي چې يوه پكې د روژه دار دعا ده. (السلسلة الصحيحة ١٧٩٧ و صحيح الجامع ٣٠٣٠).

**۴- د جمعې شپه او ورځ د جمعې او په هغې کې یو ساعت**: لکه چې رسول الله ﷺ علي ؓ ته وویل: " إن في ليلة الجمعة ساعة، الدعاء فيها **مستجاب**. (الترمذي ٤٩١، أبوداؤد ١٠٤٦ و النسائي جـ٣ صـ١١٤ بسند صحيح).

**ترجمه**: یعنې په شپه د جمعې کې یو ساعت دی چې دعا په هغه کې قبوله کړی شوې ده.
اوحدیث دابوهریره کې راځي رسول الله ﷺ فرمایې: ان في الجمعة لساعة لا یوافقها عبد مسلم وهو قائم یصلی: یسأل الله شیئاً إلا أعطاه إیاه وقال بیده **یقللها**. (صحیح ا لبخاري ٩٣٥ ومسلم ٨٥٣ والنسآئي جـ٣ صـ ١١٥ وابن ماجه ١١٣٧).

**ترجمه**: یقیناً په جمعه کې یو ساعت دي موافقت نه کوي ددغه ساعت سره یو بنده مسلمان په داسې حالت کې چې دی مونځ کوي او الله تعالی نه سوال کوي مګر الله تعالی هغه ته ورکوي او رسول الله ﷺ بیا په لاس اشاره وکړه چې داډیرلږ وخت وي.
اودمسلم روایت کې دي چې (وهي ساعة خفیفة) یعني دا ډیر سپک او لږ وخت وي. امام احمد رحمه الله وایې اکثراحادیث چې په هغي کې په دغه ساعت کې دعا دقبلیدلو امید کیدي شي هغه دمازدیګر دمونځ نه بعد دي او د زوال دلمر نه هم امید کیدي شي امام ترمذي او ابن حجر العسقلاني او ابن القیم (رح) د دې تفصیل ذکر کړی دی.

**٥ – جوف اللیل**: نیمه شپه کې. ابوهریره ؓ وایې: رسول الله ﷺ فرمایې: ینزل ربُنا کُل لیلةٍ إلی السمآء الدنیا حین یبقی ثُلثَ اللیل الآخر فیقول: من یدعوني فأستجیبَ له؟ من یسألُني فأعطیه؟ من یستغفرني فأغفرله. (البخاري ١١٤٥ ومسلم ٧٥٨ والترمذي ٣٤٩٣ ابوداؤد ١٣١٥ ابن ماجه ١٣٦٦).

**ترجمه**: راکوزيږي څمونږ رب هره شپه اسمان ددنيا ته کله چې يوه حصه ددريونه باقي پاتې شي نو وايې:څوک به مانه دعا وکړي چې زه يې قبوله کړم څوک به سوال وکړي چې زه يې ورکړم څوک به ښښنه وغواړي چې ښښنه ورته وکړم.

**عمرو بن عُبينة ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمايې**: أقرب ما يكون الرب من العبد في جوف الليل الآخر فان استطعت ان تكون ممن يذكر الله في تلك الساعة فكن. (ابوداؤد ١٢٧٧ وصحيح الترمذي ٣٨٣٢ صحيح الجامع ١١٧٣ والحاكم ٣٠٧)

**ترجمه**: ډيرزيات چې رب خپل بنده ته نزدې دی هغه دشپې په آخره حصه کې وي نو که ستا وس وشي چې ته دهغه چانه شي چې په دغه کې الله تعالی يادوي نوشه).

٦ – **وقت السحر**. دا دشپې آخري حصه ده چې الله تعالى فرمايې: وَٱلْمُسْتَغْفِرِينَ بِٱلْأَسْحَارِ ﴾ آل عمران: ١٧

**ترجمه**: هغه ښښنه غوښتونکي په وخت دسحرکي.

٧ – **داذان په وخت کې**: سهل بن سعد ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمايې: ثنتان لا تُردان- الدعآء عند الندآء وعند البأس حين يُلحم بعضهم بعضاً.

(صحيح – ابواؤد ٢٥٤٠ والدارمي ١٢٠٣ وابن خُزيمة ٤١٩ والحاكم جـ١ صـ١٩٨ وصحيح الجامع ٣٠٧٩ وصحيح الترغيب ٢٦٢)

**ترجمه**: دوه دعاګاني دی چې نه واپس کيږي – داذان په وخت کې او په وخت دجنګ (جهاد) کې چې کله مسلمانان کافران قتلوي.

**٨ – داذان او اقامت په مينځ کې**: انس ﷺ فرمايي: رسول الله ﷺ فرمايي: لايُرد الدعاء بين الاذان والإقامة قالوا فمإذا نقول يا رسول ا لله؟ قال سلوا الله العافية في الدنيا والآخرة- (ابو داود **٥٢١** والترمذي **٢١٢** وعمل اليوم والليلة للنسآئي **٢٨** وابن حبان **٢٩٧** واحمد **ج٣ ص١١٩** وصححه الألباني في صحيح الجامع **٣۴٠٥** والاروا **٢٥٥** وصحيح الترمذي **٣٨۴٢**)

**ترجمه**: نه واپس کيږي دعا داذان او اقامت په مينځ کې (قبليږي) صحابه کرامو (رض) وويل اى د الله تعالى رسوله مونږه څه ووايو رسول الله ﷺ وويل؟د الله تعالى نه سوال کوئ دعفوې په دنيا او آخرت کې)

**٩ – داقامت په وخت کې**: جابر ﷺ وايي: رسول الله ﷺ فرمايي: اذانوديَ بالصلاة فتحت أبواب السمآء واستجيب الدعاء- (احمد ج٣ ص٣٤٢)

وفي إسناده ابن لهيعة وحسنه الألباني في صحيح الترغيب ٢٥٥)

**ترجمه**: کله چې دمونځ دپاره اقامت وشي نو دآسمان دروازې بيرته کړی شي او دعا قبوله کړی شي.

**سهل بن سعد الساعدي** ﷺ **وايي**: رسول الله ﷺ فرمايي:ساعتان تُفتحُ فيهما ابواب السمآء قلما تُردُ على داعٍ دعوته لحضور الصلاة والصف في سبيل الله – (الطبراني في الكبير وهو حديث صحيح – صحيح الجامع **٣٥٨٧** وصحيح الترغيب **٢٢٢**)

**ترجمه**:دوه وختونه دی چې پکې دآسمان دروازي خلاصيږي او ډيرکم وي دعا پکي واپس شي چې يو دمونځ دحضور وخت او اقامت او بل دجهاد صف جوړولو وخت کې.

انس ﷺ وايې : رسول الله ﷺ : فرمايې: الدعاء لا يُرد بين الاذان والاقامة – (الترمذي ۲۱۲ – وابوداؤ د ۵۲۱ احمد ج۳ ص۱۱۹ والنسآئي في عمل اليوم والليلة ۲۸ وصححه الألباني (رح) في الإرواء ۲۴۴ وصحيح الترغيب ۲۲۱

**ترجمه**: دعا داذان او اقامت په مينځ کې نه واپس کيږي).

**۱۰ – دفرض مونځونونه وروسته**: ابوأمامة ﷺ وايې: رسول الله ﷺ ته وويل شول ای رسول الله کومه دعا زياته قبليدو والا ده؟ هغه وويل : جوف الليل الآخر ودُبُر الصلوات المكتوبات – (صحيح الترمذي ۳۷۴۲)

**ترجمه**: يعني دوعاچه ښه قبليږي هغه په آخير دشپي او دفرض مونځونه وروسته وخت کې)

**فائده**: ددينه بعضو استدلال کړي چې دفرض مونځ نه روسته به لاس اوچتوي لکه بعضي مليان داکارکوي او اجتماعي دعا کوي لکن حديث کې صرف دغه وخت تعين شويدي نور زيادت لکه امام به اجتماعي شکل سره دوعاکوي او مقتديان به آمين وايې دا درسول الله ﷺ طريقه نه ده دا بدعت دی او په دی حديث کې تحريف دی. الله تعالی ته ځانته ځانته دعا کول شته خو مروجه دعاګانې چې نن سبائي مليان کوي اوکه وئي نه کړي ګويا چې فرض يې ترک کړه دا بدعت دي.

**۱۱ – په سجده کې**: ابوهريره ﷺ وايې يقيناً رسول الله ﷺ فرمايې: اقربُ مايكونُ العبدُ من ربه وهوساجد فأكثروا الدعآء. (مسلم ٤٨٢ والنسآئي جـ٢ صـ٢٢٦) وفي رواية: فادعوا ربكم في سجودكم.

**ترجمه**: ډيرنزدي بنده رب خپل ته هغه وخت چې سجده كوونكي وي په دغه وخت كې ډيره دعا كوى او بل حديث كې دى وغواړئ درب خپل نه په سجدوكي)

**۱۲ – كله چې امام ولاالضآلين ووايي**: ابوهُريره ﷺ وايې: رسول الله ﷺ فرمايې: إذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غُفرله ما تقدم من ذنبه- (البخاري ٧٩٦ – ٣٢٢٨ ومسلم ٤٠٩ ).

**ترجمه**: كله چې امام آمين ووايې نو تاسوهم آمين وايې يقيناً دچا آمين چې دملائكوآمين سره موافق شو نو دمخكني ګناهونو بښنه به ورته وشي) اوبل ځاى رسول الله ﷺ فرمايي:إذا قال الإمام غيرالمغضوب عليهم ولا الضآلين فقولوا آمين يحببكم الله . (مسلم ٤٠٤ ابوداؤد ٩٧٢).

**ترجمه**: كله چې امام غير المغضوب عليهم ولا الضآلين ووايې نو تاسو آمين ووايې الله تعالى به درسره مينه وكړي)

**فائده**:داحديث صريح دليل دي چې آمين بالجهر سنت دې ځكه كه امام په زوره آمين ونه وايې نو روسته به مقتديانو ته څه پته دجهر ولږيږي – دمذكوره مسئلي وضاحت مونږ په خپل كتاب (الدر الثمين في الجهر بالتأمين) كې كړيدي فراجعه إن شئت.

**١٣ – دزمزم اوبوُ څکلو وخت کې**: رسول الله ﷺ فرمايي: ماءُ زمزمَ لماشُربَ له – (صحيح احمد جـ٣ صـ٣٥٧ والبيهقي جـ٥ صـ١٥٨ وابن ماجة ٣٠٦٢ والسلسلة الصحيحة ٨٨٣ وصححه الالبان (رح) في الارواء ١١٢٣وصحيح الجامع ٥٥٠٢)

**ترجمه**: د زمزم اوه چې د کوم حاجت لپاره و څښل شی نو هغه حاجت به پوره شي.

عبد الله بن عباس ﷺ چې به کله دزمزم اوبه څکلي نو ويل به يې : اَللّٰهُمّ اني اسئلک علماً نافعاً ورزقاً واسعاً وشفاءً من کل داءٍ -) يعني يا الله تانه سوال کوم دنافع علم پراخه رزق او دهر مرض نه شفاء)

**١٤ – دچرګ د اذان په وخت کې**: ابوهريره ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمائلي دي: إذا سمعتم صياح الديكة فاسألوا الله من فضله فإنها رأت ملكاً وإذا سمعتم نهيق الحمار فتعوذوا بالله من الشيطان فإنه رأى شيطاناً – (البخاري ٣٣٠٣ومسلم ٢٧٢٩ – وابوداؤد ٥١٠٢ والترمذي ٣٤٥٩ واحمدجـ٢ صـ٣٠٦).

**ترجمه**: کله چې تاسو واورئ دچرګانو اذان نو د الله تعالى نه دفضل سوال وکړئ ځکه هغوی ملائک ليدلي وي او کله چې دخره اواز واورئ نو په الله تعالى سره پناه غواړئ دشيطان نه ځکه دغه خره شيطان ليدلی وي).

**فائده**: زمونږ معاشره کې دا رواج دی چې کله ښځه چرګه اذان وکړي نو فوراً بلا تاخير هغه ذبح کړي وايې دکور خاوند مړکيږي دادجاهليت عقيده ده چې ځان ترينه ساتل پکاردي دحديث مطابق دغه چرګې ملائک ليدلی دی او ته هغه ذبح کړی دا ځومره غلط او بې ځايه رواج دی.

**١٥ – دباران د ودريدلو په وخت كي**: رسول الله ﷺ فرمايي: أُطلبوا استجابة الدعاء عند التقاء الجيوش وإقامة الصلاة ونزول الغيث. (صحيح – رواه الشافعي في الأم جـ١ صـ٢٢٣عن مكحول مرسلاً لكن الحديث له شواهد انظر التعليق الرغيب جـ١ صـ١١٦ والسلسلة الصحيحة ١٤٦٩ وصحيح الجامع ١٠٢٦)

**ترجمه**: ددعاء دقبليدو طلب وكړئ په وخت دمسلمانانو او كافرانو دجنګ كي. او دمونځ او داقامت په وخت كي او دباران دوريدوپه وخت كي).

# فصل

## كوموځاى‌ونو كې دعاګانې قبليږي؟

**١ – كله چې په صفااو مروة باندې ودريږي**: ابوهريرة ﷺ وايي: رسول الله ﷺ صفاته راغي او بيت الله ته يې وكتل او لاسونه يې اوچت كړل او د الله تعالى حمدئي وويلو (ويدعوه ماشاء الله أن يدعوه) (مسلم ١٢١٨) يعني دوعائي وكړه هغه چې دالله تعالى خوښه ده.

**٢ – دبيتُ الله داخل كې دعاكول**: حديث كې راځي رسول الله ﷺ چې كله بيت الله ته داخل شو نو په كنجونوكي دعا وكړه – (صحيح البخاري ٢٩٨ – ومسلم ١٣٣٠).

اوبل حديث كې راځي چې رسول الله ﷺ كله چې بيت الله ته داخل شو نو دقريشو بعضو خلكو ته يې ښيرې وكړي (صحيح البخاري في الحج).

**٣ – دجمرو دويشتلو وخت كې**: حديث كې راځي رسول ا لله ﷺ به دجمرو ويشتلو وخت كې لاسونه اوچتول او دعابه يې كوله - (صحيح البخاري ١٧٥٢).

**٤ – دمشعر حرام خواكي دعا كول**: حديث كې راځي رسول الله ﷺ دمشعر حرام په خواكي دعا وكړه (مسلم ١٢١٨).

# فصل

## مهمه فائـــده

داچه دعا دقوي اسبابونه ده په دفع کولو دهر مضر اوبد څیز کې او په حصول دمطلوب کې لکن کله کله بیا دغه قوي سبب کارونکړی وجه داده چې یا خو د داعي زړه کمزوری وي الله تعالی طرفته یې توجه کمه وي او یا یو مانع موجود وي دقبلیدلونه لکه حرام خوراک یا دګناه تاثیر په زړه دداعي باندې چې زړه یې زنګ شوي وي یا پري غفلت او سهوي غلبه کړي وي ، لکه چې مخکې حدیث دابوهریره ﷺ ذکر شو چې الله تعالی (لایقبل دعاء من قلبٍ غافلٍ لاهٍ) نودغه دعا دزړه غفلت هغه بي تاثیره کړي قوت یې ضعیف کړي نو بنده داګمان وکړي چې ځما دعا ولې نه قبلیږي نو دغه موانعو ته یې خیال نه وي.

**عبدالله بن احمد** دخپل پلار په کتاب الزهد کې ذکرکړي دي – هر کله چې بـني اسرائیلو باندې امتحان سخت شونو دوی یو ځای ته ووتل نو الله تعالی د دوی هغه نـبي ﷺ ته وحي وکړه چې تاسو خو راوتلي یاست لکن په نجس بدنونو سره او تاسو هغه لاسونه ماته اوچت کړئ چې په هغي مووینې توي کړي او کورونه مو دحرامونه ډک دي اوس په تاسو ځما غضب سخت شوي دي تاسو نه زیاتوي ځمانه مګر لرې والي په دعا کې (الجواب الکافي لابن القیم رحمه الله ص٨).

**دویمه فائده**: کله چې دزړه دحضورسره وخت دقبلیدلو د دعا یوځای شي کوم چې مخکې مونږ ذکر کړه او خپله عاجزي الله تعالی ته ظاهره کړی او

قبلې ته مخ کړي او په اودس سره لاسونه الله تعالی ته اوچت کړي او اول حمدُ ثنا او بیا درود شریف په رسول الله ﷺ ووایې او دخپل حاجت نه مخکې توبه او استغفار وکړي او د الله تعالی په اسماء حسنی او صفاتو او توحید دهغه سره دعا وکړي او مخکې دعا نه صدقه هم ورکړي نو دعا به ان شاء الله نه ردکیږي او ضروربه قبلیږي.

**دریمه فائده**: کومې دعا ګانې چې په مخصوص وختونو یا مخصوص ځایونو کې راغلې دی نو دهغې ویل ددغه ځایونو او وختونو نه علاوه نوروځایونوکې ویل نه دي په کار ځکه دشارع په هغې کې ضرور څه راز شته چې مونږ پرې نه پوهیږو ، ځکه مبنی دعباداتو په اتباع ده نه په ابتداع سره ،لکه دمونځ ذکر مثلاً دمسجدته داخلیدو وخت کې ووایې یا دروژه ماتې دعا دبیت الخلاء کې ووایې.

**څلورمه فائده**: بعضې اذکار او دعاګانې په ځای یا مونځ کې ډېرې راغلې دي مثلاً په سجده کې یا رکوع کې یا لکه د سبا بیګا اذکار یا دخوب دعاګانې ، یا په تشهد کې مختلفې دعاګانې ، نو غوره قول دا دي چې په ټولو دي عمل وشي او که طاقت یې وي اخر کې نو بعضې دي ولولې البته په ټولو دی عمل وکړي کله یوه دعا کله بله خو چې ټولې یو وار ولوستل شي.

البته بعضې داسې ځایونه وي چې په هغې کې ډېرې دعا ګانې راغلې وي لکن ټولې دعاګانې به یو ځل ویل کیږي لکه مثلاً دمونځ په افتتاح کې سبحانک اَللّٰهُمّ یا د دې په ځای نورې ډېرې دعاګانې راغلې وي ، یا لکه د التحیات مختلف الفاظ ، نو په دی مواضعو(ځایونه) کې به کله یوه دعا

کله بله چې په ټولو عمل وشي. البته ټولي دعاګانې به دلته نه یوځای کوي، شیخ الاسلام ابن تیمیه (رح) او حافظ ابن حجر العسقلاني(رح) د دې مسئلي پوره تفصیل کړي.

**پنځمه فائده**: دکومو دوعاګانو چې وخت معلوم دي نو دهغي وخت نه روسته کول یا مخکي کول دشارع حکیم دحکمت نه سر غړونه ده لکه دمسجد دعا - دبیت الخلاء دعا دخپل وخت نه روسته یا مخکي ویل جائز نه دي خو دمسجد دعا چې کله ته مسجد ته ننوزي نو هغه به داخل دمسجد کې ووایې او نورداسي.

**شپږمه فائده**: امام ابن القیم (رح) په الوابل الصیب صـ۱۲۱ کې وایې چې دسبا اذکار چې کوم په احادیثو کې راغلي دي هغه به دراختلو نه تر لمر خاته پورې ویل کیدای شي او بیایې دقرآن هم استدلال کړی دی.

**اومه فائده**: لکه څنګه چې سړي مکلف دی د شرعیت تکالیفونو ښځي هم داسې دی نو چې مونځ مثلاً په سړو فرض دی نو په ښځو هم دارنګ دغه دعاګانې او اذکار لکه چې سړوته سنت او ثواب لري نوزنانه هم پکې شامل دی لکه چې الله تعالی سورت احزاب کې وایې(وَٱلذَّٰكِرِينَ ٱللَّهَ كَثِيرًا وَٱلذَّٰكِرَٰتِ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٣٥﴾

**ترجمه**: ذکر کونکي سړي اوښځي الله تعالی دوی لره ښښنه او لوی ثواب تیار کړی دی)

**اتمه فائده**: داچه ذکر عبادت دی او مبنی د عباداتو په اتباع سره ده نه په ابتداع سره نو چې کوم عبادت درسول الله ﷺ نه یا دهغه دصحابه کرامونه ثابت نه وي هغه بدعت او ناروا عمل دی چې ثواب پري هم مرتب نه وي هسے هندو سترې او الله تعالی ناراض . الله تعالی به برعکس دغه بدعتي ته عذاب هم ورکوي نو داسې اذکار چې په شریعت کې دهغي کوم اصل نه وي هغه ذکر کول نه دي پکار صوفیانو کې دا وظیفه ورکول یا بعضي کتابونو چې دغه اذکار راخستي دي چې – الله - الله - الله صرف اللاهو اللاهو – یاصرف هو – هو درسول الله نه داسې ذکر ثابت نه دی او نه یې کوم صحابي ته دا ښودلی دی او ذکر هغه ذکر دي چې هغه مکمله جمله وي –هو – یا صرف – الله – دا ذکر نه دي درسول الله ﷺ په احادیثو کې به داچیرته ثابته نه کړي چې دادي ذکر وي بلکه هغه همیشه صحابه کرامو رضوان الله علیهم ته اذکار چې خودل هغه په مکملي جملي وي مبتداء خبر به یې معلوم ؤ معنی به یې معلومه وه لکه حدیث کې راځي چې څلور کلمات الله تعالی ته ډیرې خوښي دي (سبحان الله، والحمد لله ، ولا إله إلا الله ، والله أكبر ،(مسلم)

او حدیث دصحیح البخاري ۲۴۰۲ ومسلم ۲۲۹۴ کې والترغیب ۲۲۷۹ کې راځي ، کلمتان حبیبتان إلى الرحمن خفیفتان على اللسان ثقیلتان في المیزان ، سبحان الله وبحمده وسبحان الله العظیم .

**ترجمه**: دوه کلمات دی چې الله تعالی ډیرې محبوبي دی په ژبه سپکي دی په تله دمیزان کې درني دی هغه سبحان الله وبحمده وسبحان الله العظیم دی)

**خلاصه**: داچه قرآن او احادیث صحیحه درسول الله ﷺ دښائسته اذکارو او دعاګانو نه ډک دي او دغه بنده بیا دا نه وایي او خودساخته ذکر یا بدعي دعاوايې نو آیا دی به (أتستبدلون الذي هو أدنی بالذي هو خیر) کې نه راځي ؟ لهذا مسلمانانوته داپکار دی چې خپل دین چې په هغي کې اذکار او دعاګانې هم شاملي دی دقرآن کریم او سنت صحیحه نه زده کړي او په هغي عمل وکړي ترڅو دغه عبادت یې الله تعالی قبول کړي.

# فصل

## دسحر او بیګاه ذکرونه

په قرآن مجید کې دسحر او بیګاه د اذکار و هم ډېر تاکید راغلي بلکه اکثر دامر په صیغو مصدر دی لکه په سورت احزاب **۴۲** آیت کې (وسبحوه بُكرةً وأصيلاً) يعني تاسو تسبیح وایې سحر او بیګاه – دارنګ سورة مؤمن **۵۵** – مریم ۱۱ – وغیره لکن درسول الله ﷺ په احادیثو کې بیا خاص الفاظ او اذکار د دغه تسبیحاتو راغلي دی چې په لاندې ډول دی.

**۱ – ابوهريرة** رضي الله عنه **وایې** رسول الله ﷺ ویلي دی: من قال حين يصبح وحين يُمسي ، **سبحان الله وبحمده** مائة مرة لم يأت أحد يوم القيامة بأفضل مما جاء به إلا أحد قال مثل قال أوزاد عليه.

(مسلم ۲٦۹۲ وصحيح الترمذي جـ۳ صـ۱٦۱).

**ترجمه**: چاچه سحر او ماښام کړو او ویلي پاکي ده الله لره سره دثنا دهغه نه – او دائي سل (۱۰۰) ولوستلو نو دقیامت په ورځ به هیڅوک دده نه بهتر نه وي مګر هغه څوک چې دده نه یې زیات لوستلي وي.

**۲ – اَمْسَيْنَا وَاَمْسَى الْمُلْكُ لله والحَمْدُ لله لَا اله الا اللهُ وَحْدَهُ لاشَرِيْكَ لَهُ لَهُ المُلكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيء قَدِيْر رَبِّ اَسْأَلُكَ خَيْرَ مَافِي هذه اللَّيْلَة وَخَيْرَمَا بَعْدَهَا وَ أعوذبِكَ منْ شَرِّ مَا في هذه اللَّيْلَة وَشَرِمَا بَعْدَهَا رَبِّ أعوذبِك مِنَ الْكَسَلِ وَسُوء**

الْكِبَرِ رَبِّ أعوذبِكَ منْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذابٍ فِيّ الْقَبْرِ. وإذا أصبح قال أيضاً اَصْبَحْنَا وَاَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ ....الخ» (مسلم ٢٧٢٣)

**ترجمه**: مونږ بيګاه کړو او بيګاه کړو بادشاهي الله لره اوحمد دی الله لره او نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه هغه يو ذات دی چې شريک نه لري ده لره بادشاهي ده او هغه لره ثناء او دا په هر څه قادر دی ، ای ربه ستانه سوال کوم ددې شپې دخيرنه او دخير دهغه څه نه چې ددې نه روسته دی، ای ربه زه پناه غواړم دشر ددې شپې او دشر دهغه څه نه چې ددې نه روسته دی ، ای ربه پناه غواړم پتا دسستۍ او دبدۍ دبوډاوالي نه، او پناه غواړم ای ربه دعذاب د اور او د عذاب قبر نه» او کله چې سبا کړو نو ويل به يې همدارنګ سباکړو مونږ او سباکړو بادشاهي الله تعالی لره....الخ.

**وضاحت**: عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايې چې رسول الله ﷺ به دا دعا دبيګاه لخوا لوستله.

٣- قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ ﴿١﴾ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلْفَلَقِ ﴿١﴾ قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴿١﴾ عبد الله بن خُبيب ﷺ فرمايې مونږ راووتلو په باراني شپه کې چې ډيره تياره وه رسول الله ﷺ مو طلب کولو ددې دپاره چې مونږ ته مونځ وکړي نو مونږ هغه وليدلو نو ويي ويل ،ووايه نو ماهيڅ ونه ويل بيائي وويل ووايه ، ما بيا هيڅ ونه ويل بيائي وويل ووايه ، نو ماوويل يا رسول الله ما اقول ؟ قال، قل هو الله أحد ، والمعوذتين حين تمسى وحين تصبح ثلاث مراتٍ تكفيک من کل شيءٍ.

(ابوداؤد٥٠٨٢ والترمذي ٣٥٧٠ وهو حديث صحيح صححه الألباني في صحيح الجامع ٤٢٨٢ وصحيح الترمذي ٣٨٢٨).

**ترجمه**:يعني ووايه قل هو الله أحد ، او معوذتين كله چې ته بيګاه کړي او کله چې ته سبا کړي نو تاته دهر څه نه کافي دي.

**۴ - اللَّهُمَّ بِکَ اَصْبَحْنَا وَبِکَ اَمْسَيْنَا وَبِکَ نَحْيَا وَبِکَ نَمُوْتُ وَالَيْکَ النُّشُوْر-** وَإذا أمسى فليقل **- اللَّهُمَّ بِکَ اَمْسَيْنَا وَبِکَ اَصْبَحْنَا وَبِکَ نَحيَا وَبِکَ نَمُوْتُ وَالَيْکَ الْمَصِيرْ.**

(صحيح اخرجه الترمذي ٣٣٨٨ وابوداؤد ٥٠٦٨ وابن ماجه ٣٨٦٨وابن حبان ٢٣٥٤ وفي صحيح الادب المفرد٩١١).

**ترجمه**: اى الله تعالى ستا په قدرت سره مونږ سحر کړو او ستا په قدرت سره مونږ بيګاه کړو او ستاپه قدرت سره مونږ ژوند تيروُ او ستاپه علم اوقدرت سره به مړه کيږو او ستا طرفته درتلل دی ، او چې کله بيګاه کړې نو ووايه: اى الله تعالى مونږ ستا په قدرت سره بيګاه کړو او ستا په قدرت سره مونږ سبا کړو او ستا په قدرت سره مونږ ژوند تيرو او ستا په قدرت سره به مړه کيږو او ستا طرفته زمونږ واپس کيدل دی .

**وضاحت**: ابوهريره ﷺ وايي رسول الله ﷺ به خپلو صحابه کراموته ددغه ذکر تعليم ورکولو چې دغه مذکوره الفاظ دسحر په وخت کې اصبحنا واصبح الملک لله او دبيګاه په وخت کې امسينا وامسى الملک لله ...الخ ويل په کار دی.

**۵ - اللَّهُمَّ اَنْتَ رَبِّي لَآ اله الَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِي وَاَنَا عَبْدُکَ وَ اَنَا عَلَى عَهْدِکَ وَوَعْدِکَ مَاسْتَطَعْتُ، أعوذبِکَ مِنْ شَرِ مَا صَنَعْتُ اَبُوء**

**لَکَ بِنِعْمَتِکَ عَلَيّ وَاَبُوْءَ لَکَ بِذَنْبِي فَاغْفِرْلِي فَاِنَّهُ لَا يَغْفِر الذُّنُوبَ اِلَّا اَنْتَ**).

(صحيح البخاري والترمذي ٣٣٩٣).

**ترجمه**:یا الله تعالی ته ځما رب یې نشته سوا ستانه حقدار دبندګۍ تا زه پیدا کړي یم او زه ستا بنده یم او زه ستا په وعده باندې کلک یم ترڅو چې ځما وس وي زه پناه غواړم دعمل دشر ځمانه ، زه اقرار کوم ستا په نعمتونو کوم چې په ما دی او زه دخپلو ګناهونو اقرار کوم ستا دپاره پس ښنه وکړی ماته ځما د ګناهونو ، ځکه چې نشته ښنه کونکي دګناهونو ستانه سوا.

**وضاحت**: رسول الله ﷺ فرمایې چې دا سید الاستغفار چا سحر په یقین سره ولوسته او په دي ورځ مړ شولو نو ضرور به جنت ته ځي او چاچه ماښام ولوستلو او دشپې مړشو نو ضرور به جنت ته ځي) اوګوره مذکوره مصادر او مراجع.

**٢ - اللَّهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَة فَاطِرَالسّموَات وَالَارْضِ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَّمَلِيکَهُ اَشْهَدُاَنْ لَآ اِلهَ اِلَّا اَنْتَ أَعوذُبِکَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَشَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِه ،**

وفي رواية

(**وَاَنِ اَقْتَرِفَ عَلَى نَفْسِيْ سُوءاً اَوْ اَجُرَّهُ الى مُسْلِم.**

قله إذا أصبحت وإذا أمسيتَ وإذا أخذتَ مضجعك.

(حديث صحيح- اخرجه الترمذي ٣٣٨٩ وأبوداؤد ٥٠٦٧ والحاكم جـ١ صـ٥١٣ وصححه ووافقه الذهبي — والزيادة ذكرها الترمذي ٣٥٢٦ من حديث عبد الله بن عمرو وعند أبي داؤد ٥٠٨٣

من رواية ابي مالک الاشعري ﷺ وهي رواية صحيحة – انظر السلسلة الصحيحة ٢٧٥٣ وصحيح الادب المفرد ٩١٣ – ٩٢٤).

**ترجمه**: یا الله ته عالم په پټه او ښکاره یې پیداکونکي داسمانونو اودځمکي یې پالونکي دهر څه یې او بادشاه دهرڅه یې زه ګواهي کوم چې نشته حقدار دبندګۍ سوا ستانه پناه غواړم په تا دشر دنفس خپل او دشر شیطان او دشرک دهغه نه - اوبل روایت کې – یا داچه زه مرتکب شم دګناه او یائي بل مسلمان ته راکاړم.

**وضاحت**: ابوبکر صدیق ﷺ رسول ا لله ﷺ ته وویل ای رسول الله داسې شي ما ته وښایه چې زه یې سبا او بیګاه وایم نو رسول الله هغه ته وویل چې دغه مذکوره ذکروایه سحر او ماښام او داد ویده کیدو په وخت کې.

**٧ – بِسْمِ اللهِ الَّذِيْ لَا يَضُرّ مَعَ اسْمِه شَيْءٌ فِي الَاْرْضِ وَلَافِي السّماَء وَهُوَالسّمِيعُ الْعَلِيْم**- درې ځل.

(حديث حسن رواه ابو داؤد ٥٠٨٨ و٥٠٨٩ والترمذي ٣٣٨٥ وصحيح ابن ماجه ٣٨٦٩ واحمد جـ١ صـ٦٢ والنسآء في عمل اليوم والليلة ١٥ – ١٦ – والحاكم جـ١ صـ٥١٤ – انظر الفتوحات جـ٣ صـ٩٩).

**ترجمه**: په نوم دالله تعالی چې هغه داسې ذات دی چې ضرر نه ورکوي دهغه دنوم سره هیڅ شي نه په ځمکه او نه په اسمان کې او هغه اوریدونکي او پوه ذات دی.

**وضاحت**:عثمان بن عفان ﷺ وایې: رسول الله ﷺ فرمائلي دي چاچه دغه مذکوره دعا هر سبا اوبیګاه او هره شپه دري ځله وویله نو هیڅ قسم ضرر(ناڅاپي)او یا مرض به ورته ونه رسیږي.

٨ - أعوذبِکَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّات منْ شَرِ مَاخَلَقَ.

(مسلم ٢٧٠٩ - احمد جـ٢ صـ٢٩٠ واپن ماجه ٣٥١٨ و النسائي في عمل اليوم والليلة ٥٨٥ - ٥٩٢ وابن السُني ٧١٢).

**ترجمه**:پناه غوارم دالله تعالی په کلمو چې پوره دی د شر د مخلوق دهغه نه ). **وضاحت**: ابوهریره ﷺ فرمایې یو سړې رسول الله ﷺ ته راغي وئي ویل یا رسول الله دشپې زه لړم وچیچلم رسول الله ﷺ ورته وویل، که دی دغه دعا دماښام دخوانه ویلي وې نو تاته به لړم کوم ضرر نه وې رسولي- او بل روایت کې راځي چې دلړم چیچل به تاته دسبا پوري ضرر نه وې رسولي.

٩ - اَللّهُمَّ انِّيْ اَسْأَلُکَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخرة ، اللهُمَّ انِّيْ اَسْئَالُکَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِيْنِي وَدُنْيَاي وَاَهْلِي وَمَالِي ، اَللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَآمنْ رَوْعَاتِي ، اَللّهُمَّ احْفَظْني من بَيْنِ يدَيّ وَمنْ خَلْفي وَعَن يَمِيْني وَعَنْ شِمَالِي، وَمنْ فَوْقِي وَأعوذ بِعَظَمَتِکَ اَنْ اُغْتَالَ منْ تَحتي.

(حديث صحيح - اخرجه ابوداؤد ٥٠٧٤ - وابن ماجه ٣٨٧١ والحاكم جـ١ صـ٥١٧ وصححه ووفقه الذهبي وصححه الألباني (رح) في صحيح الادب المفرد ٩١٢ وصحيح ابن ماجه جـ٢ صـ٣٣٣).

**ترجمه**: یا الله زه تانه سوال کوم دهر قسم ارام او راحت په دنیا او اخرت کې ، یا الله (ج) زما عیب پټ کړي او اندیښني او خطراتو نه مالره امن راکړه، یا الله (ج) څما حفاظت وکړي دمخي او روسته او ښي طرف او چپ طرف اود بره څمانه ، اوزه ستانه دعظمت په ذریعه سره د دې نه پناه غوارم چې دلاندې (څمکي) طرفته هلاک نه کړي شم.

**وضاحت**:عبد الله بن عمر ﷛ فرمايي: رسول الله ﷺ به دغه مذکوره کلمات نه پرېښودل مګرويل به يې چې کله به يې ماښام کړه او يا به يې سباکړه).

١٠ - **رَضِيْتُ بِاللهِ رَباً وَبِالْاِسْلَامِ دِيْناً وَبِمُحَمَّدٍ ﷺ نَبِياًّ.**

(الترمذي ٣٣٨٦ وابوداؤد٥٠٧٢ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٤ - والحاكم جـ١ صـ٥١٨ - وهو حديث حسن كما في الفتوحات عن الحافظ ابن حجر (رح) جـ٣ صـ١٠٢ - انظر السلسلة الصحيحة ٢٦٨٦).

**ترجمه**: راضي يم زه دالله تعالى نه په حيثيت درب کيدو باندې او داسلام نه په حيثيت ددين کيدو باندې او دمحمد ﷺ نه په نبي ﷺ کيدو باندې).

**وضاحت**: ثوبان ﷛ وايي رسول الله ﷺ فرمايي چې چا دغه ذکر ماښام کې ولوسته او نورو رواياتو کې راغلي دي چې سبااو بيګاه څوک دغه اذکار ولولي نو په الله تعالى دا ذمه داري ده چې دقيامت په ورځ به دغه راضي کوي او بل حديث کې دا هم دي چې چا دا ذکر دسبا وخت کې ولوسته-زه ذمه واريم چې دابه دلاس نه نيسم او جنت ته به يې داخلوم-اوګوره سلسلة الصحيحة ٢٦٨٦ وصححه الحاكم جـ١ صـ٥١٨ ووافقه الذهبي

١١ - **حَسْبِيَ اللهُ لَآ اِلهَ اِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ.**

(حديث حسن اخرجه ابوداؤد ٥٠٨١ وابن السني رقم ٧١).

**ترجمه**: پوره دی الله تعالی مالره نشته حقدار دبندګۍ سوا دهغه نه ، په هغه ماځان سپارلي دی او هغه دلوي عرش مالک او متصرف دي.

**وضاحت**: ابودرداء ﷺ وایې څوک چې دا آیت اوه (۷) ځله سبا او اوه (۷) بیګاه ووایې نو الله تعالی به دده د دنیا او آخرت دغمونونه کافي شي دزړه داخلاص نه یې دا ویلې وي او که د دروغونه یې ویلي وي.

**۱۲ - سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ.**

(مسلم ۲۷۲٦ وابوداؤد ۱۵۱٦ والترمذي ۳۵۵۰).

**ترجمه**: پاکي ده الله تعالی لره سره دحمد او هغه نه په اندازه دمخلوقاتو دهغه او په اندازه درضا دنفس دهغه او په اندازه دعرش دهغه او په اندازه دسیاهي دخبرو دالله تعالی.

**وضاحت**: ام المؤمنین جویریه رضي الله عنها دسبا مونځ وکړو او په خپله مصلی باندې ناسته وه چې رسول الله ﷺ د ډیر ځنډ نه روسته راغي او ام المؤمنین هماغسي ناسته وه نو رسول الله ﷺ ورته وویل ته هماغسي ناسته یې نو هغي وویل آو ـ نو رسول الله ﷺ ورته وویل ، چې ما ستا دمفارقت نه بعد څلور کلمات ویلي دي دري ځله که هغه وزن کړي شي دهغه څه سره چې نن ورځ تا ویلي دي نو درانه به شي ، چې دغه کلمات دي.

او د دې حدیث نه معلومه شوه چې دابه صرف دسحر اذکاروکي ویل کیږي ځکه نورو اذکارو دبیګاه کې داچیرته ته نه دي ثابت والله اعلم.

۱۳ – لَا اله اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْکَ لَهُ ، لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيٍء قَدِيْر.

(صحيح اخرجه ابن ماجه ۳۸٦۷ وابوداؤد ۵۰۷۷ –) والبخاري ۳۳۹۳ ومسلم ۲٦۹۱).

**ترجمه**: نشته حقدار دبندګۍ سواء دالله تعالى نه هغه يو دي شريک نه لري ده لره بادشاهي ده او ده لره ثناء ده او داپه هر څه قادر دی.

**وضاحت**: ابوهريره ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمايي: چې دغه کلمات چې سل (۱۰۰) ځله ورځ کې ولوستل نو دلسو (۱۰) عربي غلامانو ازادولو ثواب يې وشو او سل (۱۰۰) نيکي به ورته وليکل شي او سل (۱۰۰) ګناهونه به يې معاف شي او بيګاه پوري به دشيطان نه محفوظ شي.

۱۴ – اَللهُمَّ اِنِّيْ اَسْأَلُکَ عِلْماً نَافِعاً وَرِزْقاً طَيِباً وَعَمَلاً مُتَقَبَّلاً.

(صحيح اخرجه احمد جـ٦ صـ۳۰۵ وابن ماجه ۹۲۵ وله شاهد ضعيف عند الطبراني في الصغير ۷۳۵ وقال الهيثمي في المجمع جـ۱۰ صـ۱۱۱ ورجاله ثقات).

**ترجمه**: يا الله زه تانه سوال کوم دفائده مند علم او پاک رزق او دقبول شوي علم-)

**وضاحت**: اُم سلمه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ به کله دسبا مونځ وکړو او سلام به يې وګرځولو نو دا دعابه يې وکړه نو معلومه شوه چې دا دعا دسبا پوري خاص ده بيګاه ويل يې نشته.

۱۵ – اَللهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّد وَعَلَى آلِ مُحَمَّد كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلَى آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّکَ حَمِيْدٌ مَّجِيْد ، اَللَّهُمَّ بَارِکْ عَلَى

مُحَمّد وَّعَلَى آلِ مُحَمّد كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ ابْرَاهِيْمَ وَعَلى آلِ ابْرَاهِيْمَ ، انَّکَ حَمِيدٌ مَّجِيد.

**وضاحت**: ابو الدرداء ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمايي چاچه په مالس (۱۰) ځله دغه درود سحر او بيګاه وويلو نو ځما شفاعت به ده ته ورسيږي.

(صحيح الجامع **۲۳۵۷**) والترغيب **۹۷۲** وصححه المنذري.

**۱۲ - اَصْبَحْنَا عَلى فِطْرَةِ الاسْلَامِ وَكَلِمَةِ الاخْلَاصِ وَدِيْنِ نَبِيِّنَا مُحَمّد ﷺ وَمِلَّةِ ابْرَاهِيْمَ حَنِيْفاً وَمَاكَانَ مِنَ الْمُشْرِكِين.**

(حديث صحيح – اخرجه ابن السني في عمل اليوم والليلة ۳۳ والنسآئي في عمل اليوم والليلة ۱ واحمد في المسند جـ۳ صـ۴۰۵ وحسنه ابن حجر والسيوطي وصححه العراقي في تخريج احاديث الاحياء – وصححه النووي في الاذكار ۱۹۱ – وانظر صحيح الجامع جـ۴ صـ۲۰۹).

**ترجمه**: مونږ داسلام په صحيح فطرت او په کلمه داخلاص (توحيد) او دخپل نبي محمد ﷺ په دين باندې او دخپل پلار ابراهيم عليه السلام په ملت باندې سباکړو چې کلک ؤ په توحيد باندې او غاړه ايښودونکي ؤ الله تعالى ته او نه ؤ دمشرکانو له ډلي نه.

**وضاحت**: عبد الله بن أبزي ﷺ وايي رسول الله ﷺ چې به کله سباکړو نو دا دعا به يې لوستله.

## د ويده کيدو په وخت کې دعاګانې او اذکار

**۱۷ - بِاسْمِکَ اللّهُمَّ اَمُوْتُ وَاَحْيَا.**

(صحيح البخاري ۶۳۱۲ – ۶۳۲۴ – وابوداؤد۵۰۴۹ والترمذي ۳۴۱۳ وصحيح الادب المفرد ۹۱۵ –ومسلم ۲۷۱۰ عن البراء ﷺ ومشکاة المصابيح ۲۳۸۲ ).

**ترجمه**: اى الله زه ستا په نوم مړ كيږم او ژوندي كيږم.

**وضاحت**: حذيفه ﷺ وايي ؤ رسول الله ﷺ چې كله به يې اراده دخوب وكړه چې ويده شي نو دغه دعا به يې ويله

**١٨ – قُلْ هُوَ اللهُ أحد، قُلْ أعوذ بِرَبِّ الْفَلَق، قُلْ أعوذبِرَبِّ النَّاس**، دري دري ځل پوره ويل.

(دصحيح البخاري جـ٩ صـ١٣ – ومسلم ٢١٩٢ والترمذي ٣٣٩٩ وابودا ؤد ٣٩٠٢ والمسند جـ٦ صـ١١٦ والنسآئي في عمل اليوم وااللبلة ٧٨٨ وابن ٦٩٧).

**وضاحت**: عائشة رضي الله عنها فرمايي : رسول الله ﷺ چې به كله خپلي بسترى ته لاړه هر شپه نو خپل دواړه لاسونه (ورغوي) به يې يو ځاى جمع كړل او په هغي كې به يې پوكي وكړو بيابه يې دغه دري سورتونه ولوستل او خپل بدن باندې به يې رانښكلو چې كوم ځاى ته به يې لاسونه رسيدل چې اول به يې سر اومخ او دبدن مخامخ حصه مسح كړل دابه يې دري ځله كول.

**١٩ – آيَةُ الْكُرْسِي** (يو ځل ويل).

(صحيح البخاري ٢٣١١ ومسلم جـ١ صـ٢٧١ ط باكستان والصحيحة ٦٩٨ وصحيح الترغيب جـ١ صـ٢٤٩).

**وضاحت**: د ابوهريره ﷺ واقعه مشهوره ده چې هغه شيطان نيولي ؤ او شيطان هغه ته ويلي ؤ چې ما پريږده خو داسې كلمات به درته وښايم چې تاته به الله تعالى فائده دركړي او صحابه كرامو په خير باندې ډير حريص ؤ – نو شيطان ورته ويل چې كله ته دخوب دپاره بستري ته لاړشي نو آية الكرسي ووايه – چې كله دى هغه ختمه كړه نو دالله تعالى دطرفنه به تاته

يو ملائک څوکيدار مقررشي اوستابه حفاظت کوي او شيطان به درته نه نزدې کيږي تر سبا پورې نو هرکله چې ابوهريره ﷺ داخبره رسول الله ﷺ ته وکړه هغه ووېل – تاته يې رښتيا ويلي دي، خو دی دروغجن دي – دا شيطان دي.

**فائده**: ذاکر او داعي چې څه وايې بايد دهغې معنی يې ياده وي ځکه بې معنی لوستل هم کومه فائده نه ورکوي – دارنګ دآية الکرسي ويل دفرض مونځ نه روسته راغلي دي. بل چې آية الکرسي يو آيت دي چې دالله لا اله الا هو الحيُ القيوم نه شروع تر وهو العلي العظيم پورې ختم دی – بعضې جاهلان او متصوفه ورپسې دا آيت هم وايې چې (لا اكراه في الدين ...الخ داخطا ده چې ثواب پرې مرتب نه دي ځکه الفاظ دشارع توقيفي دي کوم الفاظ چې په شرع کې راغلي وي دهغې نه تجاوز پکار نه دي.

٢٠ – ءَامَنَ ٱلرَّسُولُ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡهِ مِن رَّبِّهِۦ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَۚ كُلٌّ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ لَا نُفَرِّقُ بَيۡنَ أَحَدٖ مِّن رُّسُلِهِۦۚ وَقَالُواْ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَاۖ غُفۡرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيۡكَ ٱلۡمَصِيرُ ﴿٢٨٥﴾ – تر آخر دسورت پورې.

(صحيح البخاري ٥٠٠٩ ومسلم ٨٠٨ والترمذي ٢٨٨٤ وابوداؤد ١٣٩٧ وابن ماجه ٢٣٦٩ – واحمد جـ٤ صـ١١٨).

**وضاحت**: ابو مسعود الانصاري ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمايې: چاچه دسورت بقرة آخري دغه دوه آيتونه په شپه کې ولوستل نو دا ته به کافي شي يا دقيام الليل نه يا د قرآن لوستلونه مطلقاً په مونځ کې – يا به دشر د شيطان او انسانانونه ورته کافي شي –

علي ﷛ وايې چې څوک عقل والا وي نو دا آيتونه دشپې دخوانه نه پريږدي مګر دخوب نه يې مخکې وايي .(صحيح الاذکار صـ ۱۲۰).

**۲۱ – بِاسْمِكَ رَبِّيْ وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ اَرْفَعُهُ اِنْ اَمْسَكْتَ نَفْسِيْ فَارْحَمْهَا وَاِنْ اَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَكَ الصَّالِحِيْنَ.**

(صحيح البخاري ٦٣٢٠ ومسلم ٧٣١٤ والترمذي ٣٣٩٨).

**ترجمه**: ستاپه نوم مي کيښودلو خپله ډډه ای ربه او ستا په نوم به يې پورته کوم – که تازما روح واخسته نو رحم پري وکړه په هغې او که دي راپريښوده ځما روح نو حفاظت يې وکړه په هغه څه چې ته پري دخپلو نيکو بنده ګانو حفاظت کوي.

**وضاحت**: ابو هريره ﷛ فرمايې- رسول الله ﷺ وايې: کله چې يو دتاسونه بستري خپلې ته راشي نو هغه دي وڅنډي ځکه تاته پته نشته چې په بستره کې دي څه پراته دي بيا به په ښي طرف څملي او بيا دي دغه دعا ووايي.

**۲۲ – سُبْحَانَ الله:** (پاکي ده الله لره – **۳۳** ځله)

**اَلْحَمْدُ لله:** (ثناء ده الله لره – **۳۳** ځله )

**اَللهُ اَكْبَرْ:** (الله تعالی ډير لوي دي – **۳۴** ځله)

(صحيح البخاري – مسلم ۲۷۲۷ والترمذي ٣٤٠٥ وابوداؤد ٥٠٦٢ واحمد جـ١ صـ٩٦).

**وضاحت**: علي ﷛ وايې فاطمة رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته راغله چې دخادم سوال يې ترينه کولو چې خادم راکړه نو رسول الله ﷺ نه ؤ او عائشه

رضي الله عنها يې ددينه خبره کړه - علي ﷺ وايي: مونږ ته بيا رسول الله ﷺ راغي چې مونږ په خپلوبسترو پراته ؤ نو رسول الله ﷺ وويل تاسوته ونه ښايم هغه څه چې دخادم نه غوره دي – کله چې تاسو بستروته لاړشئ نو ۳۳ ځله سبحان الله او ۳۳ ځله الحمد لله او ۳۴ ځله الله اکبر وايې چې دا تاسوته دخادم نه غوره دي.

علي ﷺ وايې داکلمات مانه دي پريښي کله چې مونږ درسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چاچه ورته وويل چې دصفين په شپه دي هم نه دي پريښي هغه وويل دصفين په شپه مي هم نه دي پريښي.

**۲۳ - اَللَّهُمَّ قِنِي عَذَابَکَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَکَ.**

(صحيح اخرجه ابو داؤد ٥٠٤٥ والترمذي ٣٣٩٥ عن حذيفة – ومسلم ٧٨٠٩ من حديث البرآء بن عازب ﷺ وصحيح الادب المفرد ٩٢١).

**ترجمه**:يا الله ما دخپل عذاب نه وساته په کومه ورځ چې ته بنده ګان دوباره ژوندي کوي.

**وضاحت**: حفصه أم المؤمنين رضي الله عنها فرمايي چې کله به رسول الله ﷺ دخوب اراده وکړه نو ښي لاس به يې دخپل اننګي لاندې کيښودلو بيا به يې دغه دعا ولوستله.

**۲۴ – اَلْحَمْدُ لله الَّذِي اَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَكَفَانَا وَآوَانَا فَكَمْ مِمَّن لَا كَافِيَ لَهُ وَلَا مُؤْوِيَ.**

(صحيح: مسلم ٢٧١٥ الترمذي ٣٣٩٣ صحيح الادب المفرد ٩١٧).

**ترجمه**: ثناده هغه ذات لره چې خوراک او څکاک یې راکړو اوکافي شو زمونږ ډیر داسې مخلوق شته چې دهغه څوک کافي کیدونکي نشته او نه یې پناه و رکوونکي شته.

**وضاحت**: انس ﷺ فرمایې چې رسول الله ﷺ به چې کله بستري ته راغلو نو دغه دعا به یې لوستله.

**٢٥ - اَللّٰهُمَّ رَبَّ السّموات وَرَبَّ الَارْضِ وَرَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيءٍ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَى وَمُنْزِلُ التَّوْرَاة وَالْاِنْجِيلِ وَالْفُرْقَانِ ، أعوذبِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِيْ شَرٍ اَنْتَ آخذُ بِنَاصيته ، اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الَاوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيءٌ وَاَنْتَ الآخرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيءٌ وَاَنْتَ الظَّاهر فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيءٌ وَاَنْتَ البَاطِنُ فَلَيْسَ دُوْنَكَ شَيءٌ اقْضِ عَنَّا الدَّيْنَ وَأَغْنِنَا من الفقر.**

(صحيح اخرجه مسلم ٢٧١٣ وابوداؤد ٥٠٥٠ والترمذي ٣٣٩٧ وابن ماجه ٣٨٧٣ واحمد جـ٢ صـ٣٨١ والنسآئي في عمل اليوم والليلة ٧٩٠ ).

**ترجمه**: ای الله رب داسمانونو او رب دځمکي او رب دعرش لوي یې رب ځمونږ یې او رب دهر شي یې چونکي ددانې او دهډوکي یې او نازلوُنکي دتورات او دانجیل او دقرآن یې پناهٔ غواړم په تا دهر ضَرَرِي شي دشرنه چې ته نـیونکي یې دهغي دتندي ، یا الله ته اول یې نشته مخکي ستانه هیڅ شي او روسته هم ته یې او نشته روسته ستانه هیڅ شي او ته ښکاره یې ، پس نشته ستا دپاسه هیڅ شي اوته پټ یې پس نشته اخوا ستانه هیڅ شي اداکړي زمانه قرض او غني او بي پروا ه کړي ما دغریبۍ نه.

**وضاحت**: ابوهريره ﷺ وايې کله چې به رسول الله ﷺ خپلې بسترې ته راغې نو دا دعا به يې لوستله .

**۲۲ - اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ اِلَيْکَ ، وَفَوَّضْتُ اَمْرِيْ اِلَيْکَ وَاَلْجَاْتُ ظَهْرِيْ اِلَيْکَ ، رَغْبَةً وَّرَهْبَةً اِلَيْکَ ، لَا مَلْجَأَ وَلَامَنْجَا مِنْکَ اِلَّا اِلَيْکَ ، آمَنْتُ بِکِتَابِکَ الَّذِيْ اَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّکَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ.**

(صحيح اخرجه البخاري ج۱۱ ص۱۰۹ في الدعوات ومسلم ۲۷۱۰ وابوداؤد ۵۰۴٦ والترمذي ۳۳۹۱ وصحيح الادب المفرد ۹۲۰ واحمد ج٤ ص۲۸۵ والدارمي ۲٦۸٦ وابن ماجه ۳۸۷۸ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۷۷۳).

**ترجمه**: يا الله ماغاړه ستاحکم ته ايښې ده او سپارلی مې دې کار خپل تاته ، اوپه خپل کارکي مي په تا اعتماد کړي دوجي دثواب په طمع او د يري دعذاب ستانه ، نشته ځای دپناه او نجات مګر ته يې ، ايمان مي راوړی دی په هغه کتاب ستا چې تا نازل کړي دي اوپه هغه نبي ﷺ چې تاراليږلي دي.

**وضاحت**: براء عازب ﷺ وايې :ماته رسول الله ﷺ وويل کله چې دبسترې دتللواراده وکړي نولکه دمونځ دپاره اودس وکړه بيا په ښي ډډه تکيه وکړه او دغه دعا ووايه ، نو که وفات شوي نو په اسلام به وفات شي او دا آخري ذکر وګرځوه.

براء بن عازب ﷺ وايې چې ماورته دا دعا تکراروله نو چې دی لفظ ته راورسيدلم وبرسولک الذي أرسلت ، يعني (ونبيک الذي أرسلت په ځای

مي وبرسولک الذي ووېلو نو رسول الله ﷺ وویل لا وبنبیک الذي أرسلت
ووایه ، او برسولک الذي به نه وايې.

**فائده**:داحديث صريح دليل دي چې اوراد او اذكار توقيفي دي يعني دشارع نه کوم الفاظ راغلي دي هماغه ويل په کار دي چې به پکي تصرف په زيادت يا کموالي سره په کارنه دي اګر که دا تغير معنى هم نه فاسدوي ، ځکه لفظ درسول الله ﷺ دلته عام دي نــبي ته هم شامل دي خو سره ددينه رسول ا لله ﷺ براء بن عازب ؓ منع کړو سره ددينه چې براء بن عازب ؓ دا لفظ سهواً ويلي ؤ ، نو دهغه مبتدعينو به څه حال وي چې صحيح اذکار او دوردونه په خودساخته او دځان نه جوړشوي اذكارو باندې بدلوي ،(صحيح الترغيب جـ١ صـ٢٤٧).

## ٢٧ - سُوْرَةَ بـــني إسرائيل ، وَسُوْرَةُ الزُّمر .

(سنن الترمذي ٣٤٠٥ وسنده صحيح).

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي : ؤ رسول الله ﷺ چې نه به په ويده کيده ترڅو چې به يي سورت الزمر او سورت بني اسرائيل نه ؤ لوستلي.

## ٢٨ - الم تَنْزِيل السجدة وسورة المُلک.

(سنن الترمذي ٣٤٠٤ وسنده صحيح).

**وضاحت**: جابر ؓ وايي: رسول الله ﷺ به تر هغه نه ويده كيدلو چې تر څوئي سورة الم تنزيل (السجدة) او سورة المُلک نه ؤ لوستلي .

**فائده**: مذکوره حديثونه دمستنداذکار مُلا ذکر کړي لکن په ترمذي يې حواله ورکړيده چې ډيره بعيده او غلطه حواله ده ،حالانکه دغه حديث په

ترمذي کې **۳۴۰۵** کې موجود دي او صاحب دمستندو اذکارو رقم**۳۲۴۲** ذکر کړيدي حالانکه دغه رقم ترمذي په کتاب المناقب باب في صفة النبي ﷺ کې درسول الله ﷺ مناقب ذکر کوي.

## ۲۹ – سورة الكافرون.

( ابوداؤد ٥٠٥٥ والترمذي ٣٤٠٣) واحمد جـ٥ صـ٤٥٦ والدارمي ٣٤٣٠ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٨٠١ وصححه ابن حبان ٢٣٦٣ والحاكم جـ٢ صـ٥٣٨ ووافقه الذهبي (رح) وصححه الألباني(رح) في صحيح الترغيب ٦٠٤ وصحيح الجامع ١١٦١).

**وضاحت**: نوفل الاشبهي رضي الله عنه وايي: ماته رسول الله ﷺ وويل چې قل يآ أيها الكافرون ولوله با په همدي ويده شه ځکه د دې ويل دشرک نه براءت دی .

## ۳۰ – بِسْمِ اللهِ وَضَعْتُ جَنْبِي اَللّهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِي وَاخْسَأْ شَيْطَانِيْ وَفُكَّ رِهَانِيْ وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِي الْاَعْلٰى.

(اسناده صحيح اخرجه ابوداؤد ٥٠٥٤ والطبراني جـ٢٢ صـ٢٥٨ وصححه الحاكم جـ١ صـ٥٤٠ ووافقه الذهبي).

**ترجمه**: دالله تعالى په نوم مي ډډه كيښوده يا الله ماته ګناه معاف كړي او زمانه ځما شيطان لرې كړي او ځما نفس داورنه ازادكړي او مالره په اوچت مجلس كې شامل كړي (چې هغه دملائكو او انبياء عليهم السلام مجلس دی).

**وضاحت**: ابو الازهر الانماري رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ چې به كله دشپې دخوانه خپلي بستري كې ډډه ووهله نو دغه دعا به يې ويله. او دا دعا دشيطان نه دبچ كيدلو او دجهنم داورنه دخلاصيدو بهترينه دعاده.

۳۱ - اَلْحَمْدُ لله الَّذِيْ كَفَانِيْ وَآوَانِيْ واَطْعَمَنِيْ وَسَقَانِيْ وَالَّذِيْ مَنَّ عَلَيَّ فَـأَفْضَلَ وَالَّذِيْ اَعْطَانِيْ فَـأَجْزَلَ ، اَلْحَمْدُ لله عَلَى كُلِّ حَال، اَللّٰهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيْكَهُ وَالٰهَ كُلِّ شيءٍ أعوذبِكَ مِنَ النَّارِ.

(اخرجه ابوداؤد ٥٠٥٨ باسناد حسن واحمد جـ٢ صـ١١٧ والنسائي في الكبرى ١٠٦٣٤ وفي عمل اليوم والليلة ٧٩٨ وصححه ابن حبان ٢٣٥٧ والحاكم جـ١ صـ٥١٤ ووافقه الذهبي وله شاهد عندالحاكم جـ١ صـ٥٤٥ – ٥٤٦ وصححه).

**ترجمه**: ټول صفتونه دکمال خاص هغه لره دی چې زماکفایت يې وکړو دهري وجي نه او ماته يې د اوسیدو ځای راکړو او خوراک او څکاک يې راکړل او هغه ذات چې په مائي احسان وکړو او بهترين احسان يې وکړو او هغه ذات چې ماته يې راکړل او زيات يې راکړل او د الله تعالى تعريفونه دي په هر حال کې ، يا الله ته رب دهر شي يې مالک دهغي يې او حقداردبندګۍ دهر شي يې زه پناه غواړم په تاسره داورنه.

**وضاحت**: ابن عمر ﷺ فرمايې چې رسول الله ﷺ به کله بستري ته راغي نو دادعا به يې لوستله.

۳۲ - اَللّٰهُمَّ بِاسْمِكَ رَبِّيْ وَضَعْتُ جَنْبِيْ فَاغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ.

(اخرجه ابن السني ٧١٩ وسنده حسن قاله الحافظ ابن حجر في الفتوحات جـ٣ صـ١٦٤ – وذكره النووي في الاذكار ٢٤١).

**ترجمه**: ياالله ستا په نوم خپله ډډه لږوم پس ته ځما ګناه معاف کړی.

**وضاحت**: عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ به کله دخوب دپاره ډډه لږوله نو دغه دعابه يې ويــله.

**۳۳ - اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْـأَلُكَ رُؤياً صَالِحَةً غَيْرَ كَاذِبَةٍ نَافِعَةً غَيْرَضَارَّةٍ.**

(اخرجه ابن السني ۷٤۸) قال الحافظ ابن حجر رح : اخرجه ابن السني من طريقين وهو موقوف صحيح الاسناد — الفتوحات جـ۳ صـ۱۷۰).

**ترجمه**: یا الله زه ستانه دصالح او ربښتني خوب سوال کوم چې دروغ نه وي نفع ورکونکي وي او ضَرَرْ ورکونکي نه وي.

**وضاحت**:عائشه ﷺ چې به کله دخوب اراده وکړه نو دغه دعا به یې ویله . د دې دپاره چې نیک خوب ووینې او دبد خوب نه بچ شي.

## دخوب نه دراپاڅیدلو دعاګانې

**۳۴ - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَحْيَانَا بَعدَ مَا أَمَاتَنَا وَاِلَيْهِ النَّشُوْر.**

(صحيح البخاري جـ۱۱ صـ۱۱۳ في الدعوات وابو داؤد ۵۰٤۹ والترمذي ۳٤۱۳ وابن ماجه وصحيح الادب المفرد ۹۱۵).

**ترجمه**: هغه ذات لره ثناده چې راژوندي یې کړو مونږ پس دمرګ (خوب) نه او هغه طرفته زمونږ پورته کیدل دی.

**وضاحت**:خذیفه ﷺ وایې رسول الله ﷺ چې به کله دخوب نه ویښ شو نو دغه دعا به یې لوستله.

**۳۵ - اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِيْ عَافَانِيْ فِيْ جَسَدِيْ وَ رَدَّ عَلَيَّ رُوْحِيْ وَ اَذِنَ لِيْ بِذِكْرِهِ.**

(اخرجه ابن السني ۹ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۸٦٦ — واسناده حسن وليس بصحيح كما ظنَ البعض).

**ترجمه**: ثناده هغه ذات لره چې څما بدن یې جوړکړو او روح یې ماته واپس کړو اوحکم وکړو ماته دذکر خپل.

**وضاحت**: ابوهریره ﷛ وایې رسول الله ﷺ فرمایلي دی چې کله یو دستا سونه دخوب نه پاڅي نو دا دعا به وایې

## دشپې د راویښیدلودعا ګاني

**لَا اِلهَ اِلَّا اللهُ وَحْدهُ لَاشَرِيْکَ لَهُ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُو عَلَى كُلِّ شَيْء قَدِيْر – اَلْحَمْدُلله وَسُبْحَانَ الله – وَاللهُ اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِالله.**

(صحیح البخاري في التهجد جـ٣ صـ٣٣ والترمذي ٣٤١١ وابوداؤد ٥٠٦٠ واحمد جـ٥ صـ٣١٣).

**ترجمه**: مخکي دسبا په اذکار کې دمذکوره الفاظو ترجمه شویده.

**وضاحت**: عُبادَةُ بن الصامِتُ ﷛ وایې رسول الله ﷺ فرمائلي دی څوک چې دشپې راویښ شو او دغه دعائي ولوستله او بیا یې وویل یاالله ماته ښښنه وکړه او یائي دعاوکړه نو قبوله به شي او که اودس یې وکړو او مونځ یې وکړو نو مونځ به یې قبول شي.

**٣٧ – دسورة آل عمران آیت:**

**(انَّ فِيْ خَلْقِ السّموات وَالَارْضِ)** نه تر آخر دسورت پوري.

صحیح البخاري جـ١ صـ١٨٩ باب السمرفي العلم ومسلم ٧٦٣ وابو داؤد ٥٨ وجامع الاصول (١٣٩٧).

**وضاحت**: رسول الله ﷺ چې به کله تهجدو ته راپاڅیده نو دغه ایاتونه یې لوستل او په بل روایت کې دی چې کله به دخوب نه راپاڅیده نو مسواک به یې وهلو او دغه ایاتونه به یې لوستل اوویل به یې - هلاکت دی وي هغه چالره چې دغه ایاتونه وایې او سوچ او تدبر پکې نه کوي.

**۳۸ - لَا إله إلا الله الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ رَبُّ السّموات وَالَارْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيْزُ الْغَفَّار.**

(واسناده صحيح اخرجه ابن السني ٧٦٢ والحاكم والنسائي وحسنه الحافظ في آماليه وصححه الألباني (رح) في صحيح الجامع ٤٥٦٩).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دیو الله تعالی نه یواځې دی زورور دی رب داسمانونو او دځمکې او دهغه څه چې د دې په مینځ کې دی غالب دی ښښونکې دی.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها وایې: رسو ل الله ﷺ چې به کله دشپې راپاڅیدلو نو دغه دعا به یې لوستله.

## که په خوب کې څوک ویریږي نو لاندې دعادې وایې

**۳۹ - أعوذ بِكَلِمَات الله التَّامَة مِنْ غَضَبِه وَمِنْ شَرِّ عِبَادِه وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ وَاَنْ يَّحْضُرُوْنْ.**

(حديث صحيح اخرجه ابو داؤد ٣٨٩٣ والترمذي ٣٥١٩ واحمد جـ٢ صـ١٨١ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٧٦٥ وفيه عنعنة ابن اسحاق ولكن له شاهد من حديث انس رضي الله عنه رواه مالک في الموطاء وكذا روى الحديث ابن السني ٧٤٨ وحسنه الألباني في الصحيحة ٢٦٤ وصحيح ابن ماجه ٣٧٧٠).

**ترجمه**: پناه غواړم په کلمو د الله تعالی چې پوره دی – دغضب دهغه نه او عذاب دهغه نه او دشر دبنده ګانو دهغه نه او دوسوَسودشیطانانونه او ددې نه چې دوی ماته حاضر شي.

**وضاحت**: عمرو بن شعیب دخپل پلار او هغه دخپل پلار (عمرونیکه) نه روایت کوي هغه وایې چې صحابه کرامو ته به رسول الله ﷺ دغه دعا دیري خودله – اوبل روایت کې راځي چې یوه سړی رسول الله ﷺ ته شکایت وکړو چې دی په خوب کې یریږي نو رسول الله ﷺ ورته وویل چې ته کله خپلي بستري ته راشي نودغه دعا ولوله نو هغه دغه دعا ولوستله نو دغه یره ترینه لاړه.

## که غلط خوب ووینې څه به کوي؟

۴۰ – أعوذبِالله مِنَ الشَّیطَانِ الرَّجِیم. دري ځله

(مسلم ۲۲٦۳ وابوداؤد ۵۰۲۱ والترمذي ۲۲۸۸ وابن ماجه ۳۹۰۸ والدارمي ۲۱٤۸ واحمد ج۵ ص۳۰۰ والنسائي في عمل الیوم واللیلة ۸۹٦).

**وضاحت**: جابر ﷺ وایې رسول الله ﷺ فرمائلي دی کله چې یودتاسونه بد خوب ووینې نو چپ طرف ته دی لاړي (توکانړي) دري کرته تُف کړي او بیا دی أعوذبالله دري ځله ووایې او ددغه اړخ نه دی په بل اړخ شي- او بل روایت کې راځي رسول لله ﷺ فرمایې:نیک خوبونه دالله تعالی دطرفنه دی نو چې کله نیک خوب ووینې نو هغه چاته یې بیانوه چې ته یې خوښه وي او که بد ووینې نومه یې بیانوه او دچپ طرفته دی دري کرته لاړي تُف کړي

او دري كرته دی أعوذبالله  ووايې نو دغه بد خوب به ورته هيڅ ضرر ونه رسوي.

**۴۱ – اَللّهُمَّ اِنِّيْ أعوذبِکَ مِنْ شَرِّهَا  وَشَرِّ الشَّيْطَانِ.**

(صحيح البخاري ۳۲۹۲ وابوداؤد ۵۰۲۱ ومسلم ۲۲۶۱).

**ترجمه**: يا الله زه پناه غواړم په تاسره د دې خوب دشرنه  او دشردشيطان نه.

داهم لكه دمخكي په شان چپ طرفته به لاړي توكړي او دغه دعابه ووايې.

## دشيطانانو نه د ويريدلو دعا

**۴۲ – أعوذبِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ الَّتِي لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلَافَاجِرٌ مِنْ شَرِّمَا خَلَقَ وَبَرَأَ وَمِنْ شَرِّ مَايَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمِنْ شَرِّمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَمِنْ شَرِّ مَا ذَرَأَ فِي الْأَرْضِ وَمِنْ شَرِّ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمِنْ شَرِّ فِتَنِ اللَّيْلِ  وَالنَّهَارِ وَمِنْ شَرِّكُلِّ طَارِقٍ  اِلَّا طَارِقاً يَطْرُقُ بِخيرٍ يَا رَحْمنُ.**

(اخرجه  احمد ج۵ ص۴۱۹ رقم ۱۵۵۳۹ وسنده صحيح  ان شاء الله).

**ترجمه**: پناه غواړمه دالله  تعالی په پوره كلماتو سره چې دهغې نه ، نه نيک تجاوز كولي شي اونه بد دهغه  شيانونه چې الله تعالی پيداكړي دی او په ځمكه كې ئې خواره  كړي دی او دشر د هغه شي نه چې داسمان نه راكوزيږي او دشر دهغه  شيانونه چې په ځمكه كې يې پيداكړي دی او دشر دهغه څه نه چې دځمكي  نه راووځي اودشپي او د ورځي دفتنو دشرنه او

دشر دهر راتلونكي نه سوا دهغه راتلونكي نه چې په خيرسره راشي ، اى زيات رحم كونكيه.

**وضاحت**: عبد الرحمن بن خنيش التميمي ﷺ ديوسوال په جواب كې وايې كله چې دده نه چاپوښتنه وكړه چې رسول الله ﷺ دهغه شيطانانو سره څه وكړه چې ده ته دكندواو غرونونه راغلي ؤ چې به څه ويره محسوس شوه نو جبرئيل ﷺ راغي او رسول الله ﷺ ته يې وويل چې وايه هغه وويل څۀ ووايم نو جبرئيل وويل وايه : أعوذبكلمات الله التامات ...الخ = نو دشيطانانو هغه د أُور شغلي مړي شوي او الله تعالى مغلوب كړل.

## بيت الخلاء ته دننوتلو دعاګانې

**۴۳ – بسم الله.**

(اسناده صحيح بشواهده اخرجه الترمذي ٦٠٦ وابن ماجه ٢٩٧ وصححه الألباني رحمه الله في الارواء (٥٠) وانظر المشكاة ٣٥٨).

**وضاحت**: علي ﷺ وايې دپيريانو دسترګو او زمونږ بني ادمو دعورتونو مينځ كې پرده كله چې يود ددينه بيت الخلاء ته داخل شي بسم الله ويل دي) نو معلومه شوه چې بسم الله ويل په وخت دننوتلو بيت الخلاء ته دجناتو نه پرده ده.

**۴۴ – اللهُمَّ اِنِّيْ أعوذبِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائث.**

(صحيح البخاري ١٤٢ ومسلم ٣٧٥ – وفي لفظٍ آخر رواه زيد بن ارقم ﷺ أعوذبالله من الخُبْثِ والخبائث – اخرجه احمد ج٤ ص٣٦٩ وابوداؤد ٨ وابن ماجه ٢٩٦ – راجع السلسلة الصحيحة ١٠١٨).

**ترجمه**: يا الله زه پناه غوواړم په تاسره دنارينه شيطانانونه او دزنانه شيطانانونه.

**وضاحت**: انس ﷺ وايې رسول الله ﷺ چې به كله بيت الخلاء ته ننوتلونو دغه دعا به يې ويله. او زيد بن ارقم ﷺ بيا د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې هغه وايې دغه بيت الخلاء او نجس ځايونو ته جنات حاضرېږي كله چې يو دتاسونه بيت الخلاء ته راشي نو أعوذبالله من الخبث والخبائث دې ووايې).

**فائده**: دمستند اذكارو ملاصاحب وايي : دا روستني دوعاچه أعوذبالله من الخبث هم جائز ده خو اَللّهُمّ اني أعوذبک من الخُبث والخبائث اولى ده ...الخ مستند اذكار ص۴۳) زه وايم د دويمي دعا سند بالكل صحيح دى نو دجواز خبره بيا څه معنى ده بلكه دواړه يو شان سنت دى دا تنوع ده كله دا ويل كله هغه ويل په كار دى چې دجواز په صورت كې شوه نو بياخو متروک العمل ګرځي فافْهَم او خاص كرهغه ړانده مقلدينو دشيخ صاحب دپاره.

**۴۵ - غُفْرَانَکَ.**

(حديث صحيح : اخرجه ابو داؤد ۳۰ وصححه الألباني (رح) في الارواء ۵۲)

**ترجمه**: يا لله زه ستانه دبخني سوال كوم).

**وضاحت**: عائشة رضي الله عنها فرمايي: رسول الله ﷺ چې به كله دبيت الخلاءنه وتلو نو دغه دعا به يې ويله.

**فائده**: دبيت الخلاء نه دراوتلو بله دعا چې انس ﷺ روايت کړي (الحمد لله الذي أذهب عني الأذى وعافاني) داثابت نه ده ابن ماجه ۳۰۱ روايت کړي خو سند کې اسماعيل بن مسلم مکي دی چې ساقط الحديث وضاع ؤ او ګوره (المغني في الضعفاء للذهبي ۷۱۶ والکشف الحثيث ۱۰۳ والضعيفة ۵٦٥۸).

۱ – بل حديث چې رسول الله ﷺ به دبيت الخلاء نه روسته دا دعا ويله : **الحمدلله أحسن اِلَيَّ في أوله وآخره**). داهم موضوع حديث دی – سند کې عبد الله بن محمدَ العدوي دی – حافظ ابن حجر (رح) وايې متروک رماه وکيع بالوضع – وقال الألباني وضعيف الجامع **۴۳۸۴** .موضوع.

**فائده**: کله چې بيت الخلاء نه وي او انسان په هغه ځای کې قضاء حاجت رفع کوي چې بيابان وي نو دادعا به کله وايې جمهورعلماء وايې کله چې جامې راغونډوي او قضاء حاجت ته کيني نو دا دعا به وايې. دوهم چې بيت الخلاء ته داخل شو او دعا ترينه هيره شوه نو کله به يې وايې؟ غوره داده چې ناست نه وي قضاء حاجت ته نو دغه دعا به وايې نو چې کله کيناسته نو زړه کې دې ووايې که په ژبه – ځکه صحيح مسلم کې حديث دی چې يو سړي تيريدلو او رسول الله ﷺ خالي معذرت کولو نو سلام يې واچولو نو رسول الله ﷺ جواب ورنه کړو – خو دا دباب دکراهيت نه دی نه دتحريم نه – ځکه عائشه رضي الله عنها فرمايې: رسول الله ﷺ به په هر حال کې الله يادولو (مسلم **۳۷۳**) وابوداؤد ۱۸ .

# د اوداسه دعاګانې

## ۴۲ - بسم الله.

(ابن ماجه ۳۹۹ ، ابوداؤد ۱۰۱ والحاكم ۱٤٦ واحمد جـ۲ صـ٤۱۸ وصححه الألباني (رح) في صحيح ابن ماجه ۳۲۰ وصحيح ابي داؤد ۹۲ والارواء ۸۱).

**وضاحت**: ابوهريرة ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمايي:چې دهغه چااودس نه صحيح كيږي چې بسم الله يې په اول كې ونه وايې دا دليل دى چې په اودس شروع كې به صرف بسم الله وايي او بس او همداسنت طريقه ده دنوروالفاظو اواذكارو بدعيه نه ځان ساتل په كار دى.

## ۴۷ - أشهد ان لا إله إلا الله وحده لا شريک له و أشهد أن محمداً عبده ورسوله.

(حديث صحيح اخرجه مسلم ۲۳٤ وابو داؤد ۱٦۹ – ۱۷۰ والنسآئي جـ۱ صـ۱۹۲ والترمذي ٥٥ – وصححه الألباني (رح) في صحيح ابن ماجه وصحيح الترمذي وانظر روايات الحديث في جامع الاصول جـ۹ صـ۳۷۲).

**ترجمه**: ګواهي كوم چې نه شته حقدار او لائق دبنده ګۍ سوا دالله تعالى نه اوګواهي كوم ددې چې محمد ﷺ دالله تعالى بنده اورسول دى.

**وضاحت**: دعقبه بن عامر ﷺ په حديث كې راځي رسو ل الله ﷺ فرمايي چې څوک اودس وكړي او ښائسته اودس وكړي او بيا دغه دعا ووايې نو دجنت اته (۸) دروازې به ورته خلاصي شي په كومه دروازه چې داخليږي داخل دې شي.

**۴۸ - سُبْحانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِک اَشْهَدُاَنْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُکَ وَاَتُوبُ اِلَیْکَ.**

(صحیح اخرجه الحاکم جـ۱ صـ۵۳۶ والترمذي ۳۴۲۹ وابن حبان ۲۳۶۶ والنسائي في عمل الیوم واللیلة ۲۹۷ وابن السني ۴۴۷ وصححه الألباني(رح) في صحیح الجامع ۶۱۹۲).

**وضاحت**: دا دعا به هم لکه دمخکي دعا په شان روسته داودس نه لولي- حدیث کې راځي چې چا دا دعا ولوستله نو په یو کاغذ به ولیکل شي او هغه به صرف په قیامت کې پرانستل کیږي یعني کنایه ده دثواب ورکولو نه چې ثواب به ضرور ورکیدي شي.

**۴۹ - اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِیْنَ وَاجْعَلْنِي مِنَ الْمُتَطَهِّرِیْن.**

(الترمذي ۵۵ وابن السني ۳۲ – وهذا الدعاء سنده صحیح کما في صحیح الترمذي ۴۸ وصحیح ابن ماجه ۲۶۷).

**وضاحت**: داهم صحیح دعا ده کله دا دعا او کله مخکنۍ دعا ګاني ویل په کاردي صرف په یوه دعا باندې اکتفاء کول دشارع حکیم دحکمتونونه خلاف ده ځکه په هره دعا دشارع کې ځانته ځانته رازونه دی چې بیا په بله کې هغه نه وی. البته دې دعا سره بعضي تبلیغي جماعت ګوته اسمان ته پورته کوي -ګویا چې وحي پري راځي داچیرته ثابت نه دی.

**۵۰ - اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِي ووَسِّعْ لِيْ فِيْ دَارِيْ وَبارِکْ لِيْ فِيْ رِزْقِي.**

(حسن بشواهده – اخرجه النسائي في عمل الیوم واللیلة ۸۰ وابن السني ۲۸ وقال الألباني (رح) في صحیح الجامع ۱۲۶۵ – حسن وانظر جامع الاصول جـ۷ صـ۱۹۳ وصححه النووي في الاذکار صـ۸۲ رقم ۶۶).

**ترجمه**: یاالله تعالی زما ګناه معاف کړي او کورمي پراخه کړي (قبر او یا ددنیا کور) او څما په رزق کې برکت واچوي.

**وضاحت**: أبو موسی الاشعري ﷠ وايي زه رسو ل الله ﷺ ته راغلم چې اودس يې کولو نو ماترينه دغه دعا واوريدله.

**فائده**: امام ابن السني دی حديث ته باب لګولی دی (باب مايقول بين ظهراني وضوئه - يعني هغه چې داودس په مينځ کې کومه دعا ويل کيږي = او امام نسائي (رح) بيا باب لګولی دی : باب ما يقول بعد فراغه من وضوئه يعني داودس نه روسته کومه دعا ويل کيږي - لکن امام نووي (رح) بيا وايي چې د دواړو احتمال نشته - لهذا دغه صحيح دعا ده چې داودس مينځ کې يې څوک وائئ او که بعد داودس نه يې وايي هم صحيح ده لهذا دمستند اذکارو ملا صاحب خبره چې دعا خو صحيح ده خو داودس نه ده عامه ده - غلطه ده ددې الفاظو بيا څه معنی ده چې ابو موسی الاشعري ﷠ وايي : اَتَيتُ رسول الله ﷺ بِوَضُوئه فَتَوَضاء فسمعتُه يقول ٠ اَللّٰهُمّ اغفرلي ...الخ) خو تقليدهمداسي کار کوي ، الألباني (رح) په تمام المنه کې داخبره کړي نو ده هم دهغه تقليد کړي زَلَ المُقَلَدُ فَزلَ المُقَلِدُ - کذلک التقليد يفعل باهله.

**فائده**: د اودس په هراندام دعا ويل يا دهغي نه روسته انا انزلناه سورة ويل هيڅيرته ثابت نه دی ، ددې تفصيل زمونږ کتاب (تنبيه المسلمين کې کتلي شئ همدغه چې مونږذکر کړل دعاګانې ثابت دی اوبس. والله اعلم.

# کورته دننوتلو دعا

۵۱ - اللَهُمَ انِّيْ اَسْأَلُکَ خَيرَ المَوْلَجِ وخيرَ المَخْرَجِ بسم الله وَلَجْنَا وَبِسمِ اللهِ خَرَجْنَا وَعَلَى اللهِ رَبّنَا تَوَكَّلْنَا.

(حديث صحيح اخرجه ابوداؤد ٥٠٩٦ واسناده صحيح انظر الصحيحة ٢٢٥ والاذكار للنووي ٤٨).

**ترجمه**: يا الله زه دتانه بهترځای دداخليدو غواړم او بهترين ځای دوتلو - دالله تعالی په نوم سره داخل شو او دالله مونږ تعالی په نوم سره بهر شو او په الله تعالی باندې مونږ ځانونه وسپارل چې زمونږ رب دی.

**وضاحت**: ابومالک الأشعري ﷺ وائ رسول الله ﷺ فرمايې کله چې يو سړي کورته داخل شي نو دغه دعا دی ووايې او دجابر بن عبد الله ﷺ په روايت کې راځي هغه وايې ما درسول الله ﷺ نه اوريدلي دی هغه وايې چې کله يو سړي کورته داخل شي او دداخليدو وخت کې الله تعالی يادکړي او دخوراک وخت کې هم الله تعالی يادکړي نو شيطان خپلو ملګرو ته ووايې چې دلته ستاسو دپاره دشپې تيرولوځای نشته او نه دشپې خوراک - او چې کله يو سړي بغير د الله دذکر نه کورته داخل شي نو شيطان خپلو ملګروته ووائ چې دلته تاسوته دشپې دتيرولو ځای او خوارک هم وموندل شو.

**فائده**: ددې حديث په سند کې محمد ابن إسماعيل بن عياش دی چې پلار او ځوي دواړوکي څه کلام شته البته مذکوره حديث امام نووي په الأذکار رقم ۴۸ - صاحب دصحيح الاذکار رقم ۵۲ او دحصن المسلم رقم ۱۸ -

مصنف ورته صحيح ويلي او الألباني (رح) په الصحيحة **٢٥٥** کې هم صحيح ګرځولي دی والله اَعلم.

## کور نه دوتلو دعاګانې

**٥٢- بسم الله تَوَكَّلْتُ عَلَى اللهِ لا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ الَّا بِاللهِ.**

(حديث صحيح اخرجه ابوداؤد ٥٠٩٥ والترمذي ٣٤٢٢ وابن حبان ٢٣٧٥ وابن السني ١٧٨ – وقال الحافظ ابن حجر رجال ابي داؤد رجال الصحيح – انظر حاشية الاذكار للنووي ٤٥ وصححه النووي في اذكاره).

**ترجمه**: دالله تعالی په نوم شروع کوم په هغه مي ځان سپارلي دی نشته دګناه نه بچ کيدل او نه دنيکي توفيق ورکول مګر دالله تعالی په توفيق.

**وضاحت**: انس ﷺ وائئ رسول الله فرمائلي دی ځوک چې دکورنه ووځي او دغه دعا ووايې نو ده ته ويل کيږي چې دشيطان نه ستاحفاظت وکړي شو او الله درلره کافي شو هدايت درته وکړي شو او شيطان ترينه په ډډه شي او خپل بل ملګري شيطان ته ووايې: ته څنګه داسړی غولوې چې ده دپاره الله کافي کړی شوی دی هدايت ورته شويدي او دده حفاظت کړی شويدی.

**٥٣ - اَللّهُمَّ اِنِّيْ أعوذبِکَ اَنْ اَضِلَّ اَوْاُضَلَّ اَوْ اَزِلَّ اَوْ اُزَلَّ اَوْاَظْلِمَ اَوْ اُظْلَمَ اَوْ اَجْهَلَ اَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ.**

(حديث صحيح : اخرجه ابوداؤد ٥٠٩٤ والترمذي ٣٤٣٣ والنسائي جـ٨ صـ٣٦٨ وابن ماجه ٣٨٨٤ والنووي في الاذکار صـ٧١ رقم ٤٤ وصححه - واخرجه الحاكم واحمد وابن السني وغيرهم وهو في صحيح الترمذي ٣٦٦٧ وصحيح ابن ماجه).

**ترجمه**: یا الله زه پناه غواړم پتا سره ددینه چې څوک ګمراه کړم یا ماګمراه کړي یا بل اوخویئُم او یا زه اخویږم یا ظلم وکړم او یا په ماظلم وکړي شي یا بل نا پوه کړم او یا دماسره ناپوهي وکړي شي .

**۵۴ – بسم الله تَوَکَّلْتُ عَلَی الله – اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ أعوذبِکَ مِنْ اَن نَّزِلَ او نَضِلَّ اَوْ نَظْلِمَ اَوْنَجْهَلَ اَوْ یُجْهَلَ عَلَیْنَا.**

(اخرجه احمد في المسند جـ٦ صـ٣٠٦ رقم ٢٧١٥١ وابوداؤد ٥٠٩٤ وابن ماجه ٣٨٨٤ وغیرهم).

**ترجمه**: په نوم دالله تعالی سره دکور نه ووځم او په هغه مي ځان سپارلي دی او زه په تاپوري پناه غواړم ددینه چې مونږ وخویږو یا مونږ بي لاري شو یا مونږ ظلم وکړو یا دجهالت کار وکړو یا مونږ سره څوک دجهالت کار وکړي .

**وضاحت**: اُم المؤمنین سلمه رضي الله عنها وایي رسول الله ﷺ چې به کله ځما دکورنه وتلو نو اسمان طرفته به یې وکتل او دغه دعا به یې ویله.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو وایي چې سندئي صحیح دی (مستند اذکار صـ۴۹) لکن راجح قول دا دی چې سندئي ضعیف دی ، شعبي رضي الله عنه داُم سلمه رضي الله عنها نه سماع دابن المدیني په نزد ثابت نه ده چې دا قول راجح دی - والله اعلم. راجع جامع التحصیل في احکام المراسیل للعلائي رح.

## مسجد ته دداخلیدودعاګانې

**۵۵ – بسم الله اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَی مُحَمَّد.**

(حسن لغیره رواه ابن السني في عمل الیوم واللیلة ٨٨ وله شواهد عند الترمذی وابن السُني یُحَسَنُ بها وحسنه الألباني (رح) في تخریج الکلم الطیب ٦٣).

**ترجمه**: دالله تعالی په نوم شروع کوم – یا الله رحمت ولیږي په محمد ﷺ .

**وضاحت**: انس ﷺ وایي رسول الله ﷺ چې به کله مسجد ته داخلیدلو او یا به دمسجد نه دوتلو نو دغه دعابه یې لوستله.

**۵۶ – اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوابَ رَحْمَتِکَ.**

(صحیح مسلم ۷۱۳ وابوداؤد ٤٦٥ والنسائي جـ۳ صـ۵۳ وفي عمل الیوم واللیلة ۱۷۷ وابن السني ۱۵٦ وابن ماجه ۷۲۲ والترمذي ۳۱٤).

**ترجمه**: یا الله خلاصي کړي ماته دروازي درحمت ستا.

**وضاحت**: ابوحمید اوابو أُسید وایې رسو ل الله ﷺ فرمایې کله چې یو دتاسونه مسجدته داخل شي نو اول دی په رسول الله ﷺ درود ووایې بیا دی دغه دعا ووایې.

**۵۷ – أعوذبِاللهِ الْعَظِیْمِ وَ بِوَجْهِهِ الْکَرِیْمِ وَسُلْطَانِه الْقَدِیْمِ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ.**

(حدیث حسن اخرجه ابوداؤد ٤٦٦ وقال النووي حدیث حسن رواه ابو داؤد باسناد جید – الاذکار رقم ۷۰).

**ترجمه**: پناه غواړم په هغه الله تعالی چې لوی دی او په مخ دهغه چې عزت مندی او په بادشاهي دالله تعالی چې پخوانی ده دشیطان رټلي شوي نه.

**وضاحت**: عبد الله بن عمرو بن العاص درسول الله ﷺ نه روایت کوي وایې رسو ل الله ﷺ چې به کله مسجدته داخلیدو نو دغه دعابه یې ویله . نو چې کله دا دعاووایې نو شیطان وائې چې سړي نن ټوله ورځ ځما نه بچ شو.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ۵۰ کې دمسجد یوه دعا دترمذي رقم ۳۱۴ په روایت ذکر کړي چې رب اغفرلي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتک – (اوسکوت يې پرې کړي خو حديث منقطع او ضعيف دی امام ترمذي وايې: وليس اسناده بمتصل وفاطمة بنت الحُسين لم تدرک فاطمة الکبرى انما عاشت فاطمة بعد النبي ﷺ اشهراً – وقال الحافظ کان عمر الحسين ﵁ عند موت أُمه دون ثمان سنين (حاشية الاذکار صـ۸۵ رقم ۸۲).

## دمسجدنه دوتلو دعاګانې

## ۵۸ – بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّد.

(ابن السني ۸۹ وله شواهد عند الترمذي وابن السني يُحسِنُ بها وحسنه الألباني (رح) في تخريج الكلم الطيب ۱۳ – وقال ابن حجر (رح) في نتائج الافکار جـ۱ صـ۲۸۲ ورواته من عيسى فصاعداً من رجال الصحيح.

**ترجمه**: په نوم دالله تعالى ووُزم دمسجد نه يا الله درود وليږه په محمد ﷺ باندې.

## ۵۹ – اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْأَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ.

(مسلم ۷۱۳ – ابوداؤد ٤٦٥ والنسائي جـ۳ صـ٥٣ وابن السُني ١٥٧ وابن ماجه ٧٢٢ والترمذي ٣١٤ عن فاطمة ر ضي الله عنها وابونعيم في المستخرج ١٦٠٦ ومن طريقة ابن حجر في نتائج الافکار جـ١ صـ٢٧٤).

**ترجمه**: يا الله زه سوال کوم ستانه دفضل او رحمت ستانه

**وضاحت**: ابو حميد او ابو أُسيد ﵁ وايې رسو ل الله ﷺ وايې کله چې يو دتاسو نه وځي نو اول به درود په محمد ﷺ ووايې بيا به دغه دعا وکړي.

## مسجد کې اخستل او خرخول او بائع او مشتري دپاره دغه بددعایې کول

**۲۰ - لَا اَرْبَحَ اللهُ تِجَارَتَکَ.**

(اسناده حسن اخرجه الترمذي ۱۳۲۱ والدارمي ۱٤۰۸ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۱۷٦ وابن خُزيمة ۱۳۰٥ وعندابن حبان في صحيحه (موارد ۳۱۳ -) وابن الجارود في المنتقى ٥٦۲ والحاكم جـ۲ صـ٥٦ والبيهقي جـ۲ صـ٤٤۷ وصححه الحاكم ووفقه الذهبي والألباني في الارواء جـ٥ صـ۱۳٥ — واخرجه ابن السُني ۱٥٥).

**ترجمه**: الله تعالی دی ستاپه تجارت کې تاته فائده او نفع درنه کړي.

**وضاحت**: ابوهريره ﵁ وایې رسول الله ﷺ فرمایې کله تاسو چې مسجد کې څوک ولیدلو چې په مسجد کې څه شي خرخولو نودغه دعا ورته وایې) وجه داده چې مسجد دآخرت تجارت دپاره جوړدي ، نه ددنیا دتجارت دپاره او معلومه شوه چې کله کله مسلمان ته چې دشرع نه خلاف کار وکړي بنیري کول جائز دي .

## مسجد کې دورک شوي شي لټوونکي ته دا بنیره پکار ده

**۲۱ - لا رَدَّ اللهُ عَلَیْکَ - لَا رَدَّهَا اللهُ عَلَیْکَ.**

(مسلم ۱۲٦۰ وابوداؤد ٤۷۳ وابن ماجه ۷٦۷ والدارمي ۱٤۰۷).

**ترجمه**: الله تعالی دی تاته ورک شوي شي واپس پیدانه کړي.

**وضاحت**: ابوهريره ﷺ فرمايې رسول الله ﷺ ويلي دی کله چې تاسو يو سړي وليدو چې په مسجد کې دورک شوي شي لټون کولو نو ورته وايې چې الله تعالی دی تاته نه پيدا کوي.

# داذان او اقامت دعا

**۲۲- اَللّٰهُمَّ رَبَّ هَذه الدَّعْوَة التَّامَّة وَالصَّلَاة الْقَائمَة آت مُحَمَّداًنِ الْوَسيْلَةَ وَالْفَضيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَاماً مَحْمُوداًنِ الَّذيْ وَعَدتَّهُ.**

(حديث صحيح اخرجه النسائي جـ۲صـ۲٦ وعمل اليوم والليلة ٤٦ والبخاري ٦١٤ – ٤٧١٩ – واحمد في المسند جـ۳ صـ۳٥٤ وابوداؤد ٥۲۹ وابن المنذري في الاوسط ١١٩٤ والترمذي ۲١١ وابن ماجه ۷۲۲ وابن خزيمة ٤۲۰ والطوسي في مختصر الاحكام جـ۲ صـ۳٤).

**ترجمه**: يا الله ته مالک يې د دې پوره دعوت او مالک يې دمانځه او دريدونکي ، ورکړه محمد ﷺ ته دوسيلي مقام او غوره والي او وئي ليږه مقام محمود ته چې تا ورسره وعده کړيده.

**فائده**:(۱) جابر ﷺ وايې رسو ل الله ﷺ فرمائلي چاچه اذان واوريدلو او روسته يې دغه دعا وويله نو ځما شفاعت ورته حلال شو.

**فائده**:(۲) دی دعا کې بعضو قُصاصو نور الفاظ هم زيات کړي چې ثابت نه دی – لکه والدرجة الرفيعة او دارنګ آخرکي إنک لا تخلف الميعاد هم دبيهقي په روايت راغلي دی خو هغه شاذ دی (ارواء الغليل جـ۱ صـ۲۲۰ – او والدرجة الرفيعة هم چا دابن السُني په روايت کې ننويستي د ی چې هغه هم ثابت نه دی). درانګه داذان نه مخکې درود ويل ثابت نه دی او الصلاة والسلام عليک يا رسو ل الله خو بيا خودساخته او دځان نه جوړ شوي

درود دی چې داهم ثابت نه دی – سنت طريقه داده چې كله اذان واورې نو داذان اجابت کول په کار دی يعني هماغه الفاظ داذان ويل په کار دی بيا درود ويل په کار دی لکه حديث دعبد الله بن عمرو کې راځي رسو ل الله ﷺ فرمايي: إذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما يقول ثم صلوا عليَ فانه من صلى عليَ صلاةً صلى الله عليه بها عشراً ثم سلوا الله لي الوسيلة – الحد يث (مسلم ٣٨٤ وابوداؤد ٥٢٣ والترمذي ٣٦١٩ وغيرهم).

**ترجمه**: كله چې تاسو دمؤذن نه اذان واوريدلو نوتاسو هم ورسره اذان ووايې بيا په ما درود ووايې ځکه چاچه په ما يو ځل درود وويلو الله تعالى به پري لس (١٠) ځلے درود ووايې بيا ما دپاره دوسيلې مقام سوال دالله تعالى څخه وکړئ

**فائده**: داهم دعمر بن الخطاب ﷛ په حديث کې ثابت دی چې کله دمؤذن حيَ على الصلاة او حيَ على الفلاح ته ورسيږي نوتاسو به ورسره لاحول ولا قوة الا بالله ووايې اوبس ، العلي العظيم ورسره ثابت نه دی او يا ما شاء الله - داهم دځان نه جوړ شوي دی – او الصلاة خير من النوم جواب به هم الصلاة خير من النوم ورکول کيږي – بعضو قصه ګرو پکښې – صدقت وبررت وبالحق نطقت – اضافه کړی خوداهم ثابت نه دی- دارنګ د قَدقامتِ الصلاة په جواب کې - أقامها الله وأدامها - ويل لکه چې بعض خلکَ دا وايې داهم ديو مجهول او دضعيفو راويانونه نقل دی چې عمل پري په کار نه دی ځکه دا دعموم خلاف دی چې فقولوا مثل ما يقول = لهذا ځان ترينه ساتل په کار دی.

دارنګ عوام الناس خلک چې کله اذان شروع کړي نو ټول خلک به ﷻ شروع کړي دا بدعت او په دین کې ناروا عمل دی ځکه اذکار او دعاګانې توقیفي دي دانه چې څوک څه وایي خپله خوښه به یې وي.

**٢٣ – وَاَنَا اَشْهَدُ انْ لَا الهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ وَاَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ - رَضِيْتُ بِاللّٰهِ رَبّاً وَبِمُحَمَّدٍ رَّسُوْلاً وَبِالْاِسْلامِ دِيْناً.**

(صحيح اخرجه مسلم ٣٨٦ والنسائي في المجتبى جـ٢ صـ٢٦ والكبرى ١٦٤٣ وعمل اليوم والليلة ١٦٩ – وابوداؤد ٥٢٥ والترمذي ٢١٠ واحمد جـ١ صـ١٨١ ومن طريقة ابو نُعيم في المستخرج على صحيح مسلم ٨٤٤ وابن السني ٩٨ وابن حبان في صحيحه ٦٩٣) والحاكم جـ١ صـ٢٠٣ والبيهقي في الدعوات الكبير٤٨).

**ترجمه**: زه ګواهي کوم چې نشته سوا دالله تعالی نه حقداربنده ګۍ مګر یو الله دی او شریک نه لري اوګواهي کوم چې محمد ﷺ د الله تعالی بنده او دهغه رسول دی – راضي یم په الله تعالی چې ځما رب دی او په اسلام چې ځما دین دی او په محمد ﷺ ځما رسول دی.

**وضاحت**: سعد رضي الله عنه فرمایي رسول الله ﷺ وایې چاچه دمؤذن اذان واوریدلو او دا دعا یې ولوستله نو الله تعالی به ورته ګناهونه معاف کړي.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ**٥٥** کې دریمه دعا داذان ذکر کړیدی – اَللّٰهُمَّ اَعط محمدن الوسيلة واجعل في العليين درجته وفي المصطفين تحيتَه وفي المقربين ذكره – بیا وایې رواه الطبراني في الكبير ورجاله موثقون ...الخ

لکن حديث ضعيف دی الطبراني په الکبير جـ١٠ صـ١۴ – ٩٧٩٠ کې ذکر کړي ابن السني ١٠٠ هم ورايت کړي – امام هيثمي په المجمع جـ١ صـ٣٣٣ – کې وايې ورجاله موثقون – نو زل المقلَدُ فزل المقلِدُ – سند کې عمر ابوحفص دی چې مجهول دی اودده متابعت ابوعمر البزار کړي په شرح المعاني الآثار جـ١ صـ١۴۵ کې لکن ابوعمر البزار چې حفص بن سليمان ، دی متروک الحديث دی – بل شاهد يې په الطبراني في الکبير ٧٩٢٢ کې هم شته خو هيثمي وايې فيه مطرح بن يزيد وهوضعيف) اوګوره مجمع الزوائد جـ١٠ صـ١١٢).

حاصل داچه حديث ضعيف دی عمل پرې پکار نه دی او نه دی ضعيفو متابعاتو خوشحاليږي نو په مسنون مستند کې ذکر کول په کار نه ؤ – تر څوئي اسم دمسمی سره برابرشي.

**مهمه فائده**: دمستندواذکارو ملا صاحب يو بل ړوند تقليد کې راګيرشويدي - دمستدرک دحاکم نه يې يوه دعا نقل کړي خو ګمان نه کوم چې دهغه نه يې نقل کړی وي صرف حواله يې ورکړي مستدرک يې نه دی کتلي.

دعا دا ده- اَللّهُمّ رب هذه الدعوات المستجابة المستجاب لها دعوة الحق وکلمة الإخلاص أحيناعليها وتوفنا واجعلنا من صالحي أهلها عملاً – بياوايې : المستدرک جـ٢ صـ٢۴٣ خو حواله غلطه ده بلکه المستدرک جـ١ صـ۵۴٧ رقم ٢٠٠۴ کې دا دعا ذکرده – صاحب بيا وايې صحيح الاسناد ولم يخرجاه - حالانکه حاکم وايې: هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه – خو امام ذهبي (رح) تلخيص المستدرک کې وايې عفيرواهٍ –جداً يعني عفير بن معدان يکي دی چې ډير واهي دی . او دحاکم تساهل خو خپله

ملاصاحب ته معلوم دی حدیث نهایت ضعیف دی (دوه علتونه) (۱) سند کې عفیر بن معدان دی ابوحاتم په الجرح والتعدیل جـ۳ صـ۳٦ کې وایې هو ضعیف الحدیث یکثر الروایة عن سلیم بن عامر عن ابي اُمامة عن النبي ﷺ بالمناکیر وما لا اصل له لا یشتغل بروایته – اهـ (۲) دویم پکي الولید بن مسلم دی چې تدلیس التسویه کوي او دلته یې تصریح په تحدیث نه دی کړي ددې وجي نه امام ذهبي (رح) دحاکم پسي تعاقب کړي چې عفیر واهٍ جداً او امام بوصیري هم وایې : ولیس کما زعم – الحاکم - لتدلیس الولید بن مسلم وضعف عفیر بن معدان – اتحاف الخیرة المهرة جـ۲ صـ۱۱۹ –) هیثمي هم وایې فیه عفیر بن معدان وهو مجمع علی ضعفه (مجمع الزوائدجـ۱۰ صـ۱۵۵ -) دملاصاحب مقلَد الشیخ الألباني هم په الصحیحة جـ۳ صـ۴۰۳ کې وایې اسناده واهٍ لهذا حدیث نهایت ضعیف چې موضوعیت ته نزدی دی نو څنګه بیا دا مستند او مسنون اذکار دی ملاصاحب خو دتحقیق دعوه ډیره کوي خو دلته ولې بیا بي تحقیقه لګیا دی . فسبحان من لا ینسی.

## دمونځ دشروع دعاګانې او اذکار

درسول الله ﷺ نه دمونځ په شروع کې مختلف اذکار او دعاګانې راغلي دی چې کله په یوه او کله په بله عمل کول په کار دی داچه په یوي دعا پسي نښتي یې نو دنورو اذکارو د اسرارو نه سړي محروم شي او دشارع حکیم دحکمت نه بي برخه شي لهذا دعاګانې خو ډېرې دی چې ډېرې مهمي دا دی

**۲۴ - اَللّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَّ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ ، اَللّهُمَّ نَقِّنِي مِنَ خَطَايَايَ كَمَا يُنَقَّي الثَّوْبُ الْاَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ ، اَللّهُمَّ اغْسِلْنِي مِنْ خَطَايَايَ بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ.**

(صحيح البخاري جـ٢ صـ١٩٠ ومسلم ٥٩٨ وابوداؤد ٧٨١ والنسائي جـ٢ صـ١٢٨ والألباني (رح) في الارواء ٨).

**ترجمه**: یا الله زما او زما دګناهونو په مینځ کې جداوالي راولي لکه چې تا جداوالي راوستلي دی په مینځ دمشرق او مغرب کې ، یا الله ما دګناهونونه پاک کړي لکه چې سپینه جامه دخیري نه پاکیږي ، یا الله ما دخپلو ګناهونونه په واوره ، اوبو ، او ګلۍ سره ووینځه.

**وضاحت**: ابو هریره ﵁ وایې رسول الله ﷺ چې به کله تکبیر تحریمه ولوستله نو لږ وخت به چپ ؤ مخکې دقرآن لوستلو نه، ما وویل ای رسول الله ﷺ زما مور او پلار دی تانه قُربان شي ته د تکبیر تحریمي او قرآن مینځ کې څه وایې نو هغه وویل چې دغه دعا وایمه.

**۲۵ - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْداً كَثِيراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيهِ.**

(اسناده صحيح اخرجه ابو يعلى في مسنده ٢٩١٥ وابن حبان د١٧٦١ ومسلم ٦٠٠ وابو داؤد ٧٦٣ ومن طريقهما البغوي في شرح السنة ٦٣٣ والنسائي جـ٢ صـ١٢٣ وابن خزيمة ٤٦٦ وابن السُني ١٠٩).

**ترجمه**: ټول صفتونه الله تعالی لره دی ډیر صفتونه پاک چې برکت والا دی.

**وضاحت**: انس ﷺ وايي : رسول الله ﷺ مونځ کولو يو صحابي راغي او مونځ کې داخل شو چې ساه يې بنده بنده کيدله ، نو الله اکبر يې وويلو او بيا يې دغه دعا وويله - رسول الله ﷺ چې کله دمونځ نه فارغ شو نو وئي ويل دا کلمات چا وويل نو صحابه کرام چپ شول بيا رسول الله ﷺ وويل چاويلي دی دا دخير کلمات دی کوم باک نشته نو دغه صحابي وويل ما وويل ای رسول الله ﷺ - زه راغلم او ساه مي بنده وه (ځکه په جلتي راغلي ؤ) نو دغه مي وويل رسول الله ﷺ وويل چې ما (١٢) ملائکي وليدلي چې دغه کلمات يې په منډه اوچتول او ديوبل نه مخکي کيدلي.

٢٢ – سُبْحَانَکَ اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکِ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَتَعَالى جَدُّکَ وَلَا اله غَيْرُکَ.

(صحيح ابوداؤد ٧٧٦ والترمذي ٢٤٢ وابن ماجة ٨٠٤ والنسائي جـ٢ صـ١٣٢ والحاكم جـ١ صـ٢٣٥ والبيهقي جـ٢ صـ٣٢ والدارقطني جـ١ صـ٢٩٩ وهو مخرج في الارواء ٣٤١ وقال صحيح).

**ترجمه**: يا الله پاکي ده تالره سره دحمد ستانه او برکت والادی نوم ستا او لوي دی شان ستا او نشته حقدار دبنده ګۍ سوا ستانه.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها او ابو سعيد خُدري ﷺ وايي – نبي ﷺ چې به کله تکبير تحريمه ولوستله نو دغه دعا به يې لوستله – او عمر بن الخطاب ﷺ نه نقل دی چې هغه به کله تکبير تحريمه ولوستله نو دغه دعا به يې ويله.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو – دا دعا دمونځ داستفتاح په دوعاګانو کې نه ده ذکر کړي خو تعجب دا دی چې ددې نه يې په سند کې ډېرې

کمزوري دعاګانې ذکر کړي خو دا صحیح دعا یې نه ده ذکر کړي شاید چه دا یې نظر وی چې دا احناف وایې نو ځکه په کار نه ده – والله اعلم.

٢٧ – **وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّموات وَالَارْضَ حَنِيْفاً وَّمَا اَنَا منَ الْمُشْرِكِيْنَ انَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لله رَبِّ الْعَالَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهُ وَبِذَلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ، اَللّهُمَّ اَنْتَ الْمَلِكُ لَا اله الَّا اَنْتَ رَبِّيْ وَاَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِي وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْلِي ذُنُوبِي جَمِيْعاً لَا يَغْفِرُالذُّنُوْبَ الَّا اَنْتَ وَاهْدِنِي لَاَحْسَنِ الاَخْلَاقِ لَا يَهْدِيْ لِاَحْسَنِهَا الَّاَ اَنْتَ وَاصْرِفْ عَنِّي سَيِئَهَا لَا يَصْرِفُ سَيِئَهَا الَّا اَنْتَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْك وَالشَّرُّ لَيْسَ اِلَيْكَ اَنَا بِكَ وَاِلَيْكَ تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ.**

(صحیح مسلم ٧٧١ وابوداؤد ٧٦٠ والترمذي ٣٤٢ والنسائي ٨٩٦ جـ٢ صـ١٣٠ وابن حبان ٤٤٥ وابن ماجه ٨٦٤ واحمد جـ١ صـ٩٥ والدارمي ١٢٤٠).

**ترجمه**: ما برابرکړي مخ (ټول بدن) هغه ذات ته چې اسمانونه او ځمکي یې پیدا کړي دی، په توحید کلک یم او نه یم زه دمشرکانو دډلي نه ، یقیناً زما مونځ مالي عبادت ژوند او مرګ خاص الله لره دی چې رب دټول عالم دی ، نشته شریک هغه لره او په دی سره ماته امر کړي شویدي او زه دتوحید والا ؤ نه یم ، یا الله ته بادشاه یې ستانه سوا بل څوک حقدار دبندګی نشته ، ته څما رب یې او زه ستا بنده یم ما په خپل ځان ظلم کړي دی او دخپلو ګناهونو مي اقرار وکړه ، نوته څما ټول ګناهونه معاف کړی یقیناً ستانه بل څوک ګناهونه نه شي ښښلي او ته ماته دټولونه دغوره

اخلاقو هدايت وکړه - ستانه سوا بل څوک دټولونه دبهترينو اخلاقو هدايت نه شي کولي او واړه وه مانه بد اخلاق ،ستانه يې بل څوک نه شي اړولي زه ستا خدمت کې حاضريم او دحکم منلوته تيار يم او پوره خير ستا په لاس کې دی او دبدۍ نسبت تاته نه شي کيدلي زه ستا دقدرت او طاقت دوجي نه موجوديم تاته متوجه يم ته برکت والا او أُوچت يې - تانه ښښنه غواړم او تاته توبه أُوباسم.

**وضاحت**: علي ﷛ وايي رسول الله ﷺ چې به کله دمونځ (فرض يانفلي) افتتاح کوله نوتکبير تحريمه به يې وويله او دغه دعا به يې ويله لهذا هغه څوک چې وايي دا دعا په نفلو کې راغلي ده خطاء دی ، بلکه فرض نفل يکې يو برابردی.

۲۸ - اللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ اَنْتَ قَيِّمُ السَّموَاتِ وَالَارْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَکَ الْحَمْدُ اَنْتَ نُوْرُ السَّموَاتِ وَالَارْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَکَ الْحَمْدُ اَنْتَ مَلِکُ السَّموَاتِ وَالَارْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ وَلَکَ الْحَمْدُ اَنْتَ الْحَقُّ وَوَعْدُکَ الْحَقُّ وَلِقَاؤُکَ حَقٌّ وَقَوْلُکَ الْحَقُ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالنَّبِيُّوْنَ حَقٌّ وَمُحَمَّدٌ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ ، اَللّٰهُمَّ لَکَ اَسْلَمْتُ وَبِکَ آمَنْتُ وَعَلَيْکَ تَوَکَّلْتُ وَاِلَيْکَ اَنَبْتُ وَبِکَ خَاصَمْتُ وَاِلَيْکَ حَاکَمْتُ فَاغْفِرْلِي مَا قَدَّمْتُ وَمَااَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّي اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُکَ.

(صحيح البخاري جـ٣ صـ٢ في التهجد ومسلم ٧٦٩ والموطاء جـ١ صـ٢١٥ والترمذي ٣٤١٤ وابوداؤد ٧٧١ والنسائي جـ٣ صـ٢٠٩ والدارمي ١٤٩٣).

**ترجمه**: یا الله چې ته زمونږ رب یې تاله صفتونه دی ته داسمانونو او ځمکو او دهغه څه چې دی کې دی سنبالونکي ئې او تاله صفتونه دی ته دځمکو او آسمانونو روښانه کونکي ئې او هغه څه چې په دی کې دی – ته داسمانونو او ځمکو بادشاه یې او هغه څه چې په دی کې دی او تاله صفتونه دی – ته حق یې او ستا وعده حقه ده او ستا ملاقات حق دی ستا وینا حقه ده ، جنت حق دی ، دوزخ حق دی ، اور حق دی ، پیغمبران حق دی او محمد ﷺ حق دی قیامت حق دی ، یا الله ماتاته ځان تابع کړو او په تامي ایمان راوړي او په تامي ځان سپارلي دی او تاته مي رجوع کړي او ستاپه طاقت د دښمنانوسره جنګ کوم او خاص ته مي حاکم جوړکړي (فیصلي قرآن وسنت ته وړم ، نه دلاډمیکالې او نورو کفري قوانینوته) پس ښنه وکړي ماته دهغه ګناهونو چې ما مخکي کړي دی او یائي روسته کوم او هغه چې ته په هغي زیات پوه یې ځما نه ته مخکي کونکي یې او ته روسته کونکي یې ، نشته حقدار دبندګۍ مګر ته یې او نشته بل حقدار دبندګۍ سوا ستانه .

**وضاحت**: عبدالله بن عباس رضي الله عنه وایې رسول الله ﷺ چې به کله دشپي تهجدوته پاڅیدو نو دا دعا به یې ویله ، دا دعا اګر که په شروع دتهجدو کې راغلي ده خو دفرض دمونځ په استفتاح کې هم ویل کیدي شي .والله اعلم.

## دشپې دمانځه دعا

۲۹ - اَللهُمَّ رَبَّ جِبْرائِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَاسْرَافِيلَ فَاطِرَ السَّمٰوات وَالَارْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ، اهْدِنِي لِمااخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِاذْنِكَ انَّكَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ الَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ.

(مسلم ۷۷۰ ومشكوة ۱۲۱۲ وابوداؤد ۷٦۷ والترمذي ۳٤۲۰ والنسائي ۱٦۲٥ وابن ماجه ۱۳٥۷).

**ترجمه**: اى الله دجبرئيل او ميکائيل او اسرافيل، ربه داسمانونو او ځمکو نااشناپيدا کوونکيه عالم په پټه او ښکاره باندې ،ته فيصله وکړه دخپلو بندګانو مينځ کې دهغه شي چې دوی پکې اختلاف کوي ، اى الله ماته هدايت وکړه دحق طرفته په خپل توفيق باندې په هغه څه کې چې دوی په هغې کې اختلاف کوي يقيناً ته هدايت کوي هغه چاته چې ستاخوښه شي سمې لارې ته.

**وضاحت**: دعائشي رضي الله عنها نه چاپوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ به دشپې افتتاح په کومه دعا کوله نو هغې ورته دا دعا وښودله چې رسول الله ﷺ به دا دشپې دمونځ په شروع کې ويله – يعني دسبحانک اَللّٰهُمَّ په ځای به يې دا ويله او دا ډيره جامع دعا ده – والله اعلم.

## مونځ کې دقرآن نه مخکې أعوذبالله ويل

أعوذ بِاللهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ نَفْخِهِ وَنَفْثِهِ وَهَمْزِهِ.

(اسناده حسن : اخرجه ابو داؤد ٧٦٤ وابن ماجه ٨٠٧ وابن حبان ١٧٧٦ – ٢٥٩٢ – والحاكم في المستدرک جـ١ صـ٢٣٥ واحمد جـ٤ صـ٨٠ – ٨٥ ).

**ترجمه**: زه پناه غواړم د الله پورې دشیطان رټلي شوي نه دهغي دکبر نه او دبدشعر او دهغه دلیونتوب نه.

**وضاحت**: جُبیر بن مطعم ﷜ وایې چې ده رسو ل الله ﷺ ولیدو چې دقرآن نه به یې مخکې دغه تعوذ ویلو –صرف أعوذبالله من الشیطان الرجیم هم ثابت دی خو دامکمل تعوذ دی چې دمونځ پورې خاص نه دی بلکه دهر تلاوت نه مخکې دا ویل په کار دی.

## درکوع دعاګانې

٧١ – سُبّوحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوْحِ.

(مسلم ٤٨٧ والمشكاة ٨٧٢).

**ترجمه**: پاک دی الله تعالی چې رب دملائکو او جبرئیل دی.

٧٢ – سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ.

(صحيح البخاري ٨١٧ ومسلم ٤٨٤ والمشكاة ٨٧١) .

**ترجمه**: پاکي ده تالره یا الله چې رب زمونږ یې سره دحمد ستانه ، یا الله ماته ببښنه وکړه.

**وضاحت**: عائشة ر ضي الله عنها فرمایې ؤ رسول الله ﷺ چې دمونځ په رکوع او سجده کې به یې سبوح قدوس ...الخ ویلو – او همدا عائشه ر ضي الله عنها فرمایې چې رسول الله ﷺ به رکوع او سجده دواړو کې

سبحانک اَللّٰهُمّ رَبّنَا وبحمدک ...الخ ډیر ډیر ویلو – معلومه شوه چې دا دواړه دعاګانې درکوع او سجدي دی.

**۷۳ – سُبحانَ رَبِّیَ الْعَظِیم.**

(اسناده صحیح اخرجه ابو داؤد والطیالیسي ٤١٦ واحمد جه صه٣٨٢ والدارمي جا صا١٣١١ ومسلم ٧٧٢ وابوداؤد ٨٧١ والترمذي ٢٦٢ والنسائي ١٠٠٧ وابن ماجه ٨٩٧ والمشكاة ٨٨١).

**ترجمه**: پاکي ده رب زمالره چې لوي شان والا دی.

**وضاحت**: حذیفة ﷺ وایې چې ده درسول الله ﷺ سره مونځ کولو نو په رکوع کې به یې سبحان ربي العظیم لوستله او په سجده کې به یې سبحان ربي الاعلی ویلو) او دا ذکر دري ځله ویل یا پنځه ځله ویل مستحب دی. ابن مبارک وایې چې دامام دپاره پنځه (**۵**) ځله په کار دی چې مقتدی ورپسې ورسیږي.

**تنبیه**: صاحب دمستند اذکارو دغه دواړه اذکار دسجدي او رکوع چې صحیح ثابت دی نه دی ذکر کړي یا خو به یې ګمان وي چې حدیث یې ضعیف دی ځکه همدا حدیث دعبدالله بن مسعود ﷺ په روایت کې ضعیف دی ځکه مونږ ذکر نه کړه ځکه د عون ملاقات دابن مسعود سره نه دی شوي لهذا حدیث مرسل دی ، لکن صحیح روایت چې مونږ ذکر کړه دحذیفه ﷺ مسلم وغیره کې مردود دی خو شاید چې هغه یې هم ځکه نه دی ذکر کړي چې دغه اذکار زمونږ احناف ورونه وایې او دملا صاحب داحنافو سره حساسیت دی شاید چې همدا وجه وي ورنه دی خو یو محقق مجتهد بلکه دخپلو مقلدینو په ګمان معصوم هم دی ځکه مقلدین یې وایې

شیخ صاحب او خطاکیدل - خو تقلید شاید چې داحنافو شرک وي او ددوی بیا سنت وی.

۷۴ - اَللّٰهُمَّ لَکَ رَکَعْتُ وَبِکَ آمَنْتُ وَلَکَ اَسْلَمْتُ خَشَعَ لَکَ سَمْعِي وبَصَرِي وَمُخِّي وَعِظَامِي وَعَصَبِي.

(صحيح مسلم ۷۷۱ والترمذي ٤٣١٨ وابوداؤد ٧٦٠ والنسائي جـ٢ صـ١٣٠ وابن حبان ١٩٥٣ واحمد جـ١ صـ٩٥ والبيهقي في الكبرى جـ٢ صـ٣١٢).

**ترجمه**: یاالله ماتا دپاره رکوع وکړه او په تامي ایمان راوړي او تاته مي غاړه ایښې ده او زما غوږونه او سترګي، نلي، هډوکي او پلې ستا په حضور کې ټیټ شویدي.

**وضاحت**: علي ﷺ وایې رسول الله ﷺ به دغه دعا په رکوع کې لوستله.

۷۵ - سُبْحانَ ذِي الجَبَرُوتِ والملکوتِ والکِبْرِياءِ والعَظَمَةِ.

(صحيح – اخرجه ابوداؤد ٨٧٣ والنسائي جـ١ صـ١٦١ – والمشكاة ٨٨٢ – واحمد جـ٦ صـ٣٥).

**ترجمه**: پاکي ده هغه ذات لره چې خاوند دغلبي حکومت او لوئي او عظمت دی.

**وضاحت**: عوف بن مالک ﷺ وایې زه درسول الله ﷺ سره په مونځ ودریدم هرکله چې هغه رکوع کوله نو دسورت بقري په اندازه وخت یې پکي ولږوه او رکوع کې به یې دغه دعا ویله.

۷۶ - سُبْحانَکَ وبِحَمْدِکَ لَا اِلَهَ اِلَّااَنْتَ.

(مسلم **۴۸۵**).

**ترجمه**: پاکي ده تالره سره دصفتونو ستانه ، نشته حقدار دبنده ګۍ سوا ستانه.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به دغه دعا په رکوع کې ويله – داهم په فرائضواو نوافلو کې ويل کيږي

## درکوع نه اوچتيدل (قومه) دعاګانې

**۷۷ – سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهْ – رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ.**

(صحيح البخاري ۸۳۵ ومسلم ۳۹۳ والنسائي جـ۲ صـ۱۹۵).

**ترجمه**: اوري الله دهغه چاثناچه هغه لره يې وايې اى زمونږ ربه (تالره صفتونه دی).

**فائده**: ابو هريره ﷛ وايې رسول الله ﷺ سمع الله لمن حمده ويل چې کله به يې درکوع نه سراوچت کړو او ولاړ به ؤ چې رَبَّنَا ولک الحمد به يې ويلو – داحديث صريح دليل دی چې هرمونځ کونکي چې امام وې او که مقتدی او يا ځانته مونځ کونکي وې نو سمع الله لمن حمده او رَبَّنَا لک الحمد به دواړه جمع کوي او وايې به يې ځکه دا ذکر دی چې امام او مقتدې دواړو ته مستحب دی په فرضواو نفلو کې چې يو دبل نه کفايت نه کوي ځکه رسول الله ﷺ وايې: صَلوا كَماَ رأَيْتُمُوني أُصَلي – نو مقتدې به هم لکه دامام لوستل کوي بغير دفرق نه – راجع في ذلک : دفع التشنيع في حکم التسميع للسيوطي ضمن کتابه الحاوى للفتاوى جـ۱ صـ۵۲۹ والمجموع شرح المهذب للنووي جـ۳ صـ۴۲۰ والقول المبين فى أخطاء المصلين صـ۱۲۱-۱۲۲.

**تنبيه**: صاحب دمستند اذكارو دا ذكر نه دی ذكر كړي والله اعلم.

**٧٨ - اَللهُمَّ رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّموَاتِ وَمِلْءَ الَارضِ وَمِلْءَ ما بَيْنَهُما وَمِلْءَ مَاشِئْتَ مِنْ شَيءٍ بَعْدُ اَهْلُ الثَّنَاء وَالْمَجْدِ اَحقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَکَ عَبْدٌ ،اَللّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْکَ الْجَدّ.**

(مسلم ٤٧٧ وابوداؤد ٧٤٧ والنسائي جـ٢ صـ ١٩٨ والمشكاة ٨٧٦).

**ترجمه**: ای الله تعالی چې رب زمونږ يې تالره حمد دی دكمال په اندازه د ډكووالي داسمان او ځمكي او ډكوالي دهغه څه چې ستا خوښه وي بي اسمانونو او ځمكونه ته دحمدونو او دعزتونو لائق يې او ته دهغه صفتونو چې بنده يې ستا دپاره كوي ډير حقدارئي او مونږ ټول ستا بنده ګان يو ،ای الله نشته منع كونكي دهغه څه چې ته يې وركوي او نشته وركونكي دهغه څه چې ته يې منع كوي او فائده نه كوي دبخت والا ته ستانه بخت دهغه (فائده نه وركوي خاوند دمال ته ستا دنيولو مقابل كې دهغه مال).

**وضاحت**: ابوسعيد خُدري ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ به كله هم سر دركوع نه راوچت كړو نو دغه دعا به يې ويله - لهذا دركوع دعاګانې بايد كله يوه او كله بله ويل شي داچه بعض خلک صرف يوه دعا وايې او يا ورته ملاصاحب دغه يوه دعا ښائي دا درسول الله ﷺ داحاديثو سره جفاده بايد ټولي يا دی كړی شي چې په هر ه يوه عمل وشي.

**٧٩ - رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ حَمْداً كَثِيْراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيهِ.**

(صحيح البخاري ٧٩٩ رقم جـ٢ صـ٢٣٧ في صفةالصلاة ومالک في المؤطاء جـ١ صـ٢١٢ في القرآن وابوداؤد ٧٧٠ – ٧٧٣ والترمذي ٤٠٤ واحمد جـ٤ صـ٣٤٠).

**ترجمه**: ای زمونږ ربه تالره دکمال صفتونه دی ډير صفتونه او پاک چې برکت پکي اچول شويدي.

**وضاحت**: رفاعه بن رافع ﷜ وايي يوه ورځ مونږ درسول الله ﷺ سره مونځ کولو هر کله چې رسول الله ﷺ سمع الله لمن حمده وويلو نو يو سړي روسته دغه دعا وويله – رسول الله ﷺ چې کله مونځ خلاص کړو وئي ويل داکلمات چا وويل؟ نودغه سړي وويل ماوويل – رسول الله ﷺ وويل چې ماڅه دپاسه ديرش ملائکي وليدلي چې ديوبل نه په ليکلو ددغه کلماتو کې مخکي کيدلي چې کومه يوه يې اول وليکي (دومره زيات ثواب لري) او داهم په فرضو اونفلو کې ويل په کار دی ځکه داقول رفاعه ﷜ چې كُنا يوماً نُصلي وراء النبي ﷺ - داعام دی بل دا چې عام وختونو کې صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين درسول الله ﷺ پسې فرائض اداء کول – والله اعلم.

## دسجدي دعاګاني

**٨٠ – سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلاَئِكَةِ وَالرُّوْحِ.**

(مسلم ٤٨٧ مشكاة ٨٧٢).

ترجمه مخکي شويده عائشه رضي الله عنها وايي چې دا دعا به رسول الله ﷺ په رکوع اوسجده دواړو کې لوستله.

**٨١ – سُبْحَانَکَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِکَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ.**

(صحيح البخاري ٨١٧ – ومسلم ٤٨٤ والمشكاة ٨٧١).

ترجمه يې مخکې شويده.
داهم درکوع اوسجدې دعاده عائشه رضي الله عنها فرمايي چې دا دعا به رسول الله ﷺ په رکوع او سجده کې لوستله.

**۸۲ - سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلَى.**

(مسلم ۷۷۲ وابوداؤد ۸۷۱ والمشكاة ۸۸۱ — وتقدم)

**ترجمه**: پاک دی رب ځما چې ډير اوچت شان والا دی.

**وضاحت**:حذيفه ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ به په رکوع کې سبحان ربي العظيم او سجده کې سبحان ربي الاعلى لوستلو.

**اَللهُمَّ اغْفِرْلِي ذَنْبِي كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَاَوَّلَهُ وَ آخِرَهُ وَعَلانِيَتَهُ وَسِرَّهُ.**

(مسلم ٤٨٣ والمشكاة ٨٩٢ ).

**ترجمه**: اى الله ماته ټول ګناهونه وبښي واړه غټ اول او آخر ښکاره او پټ)

**وضاحت**: ابوهريره ﷛ وايي :رسول الله ﷺ به دغه دعا په سجده کې لوستله . يوه خبره دلته يادساتل په کار دی چې په سجده کې ډېرې دعاګانې يو ځاى کولي شي ځکه رسول الله ﷺ فرمايي : بنده چې الله ته ډير نزدی وي هغه دسجدې حالت دی نو تاسو پکې ډېرې دعاګانې کوي (مسلم ۴۸۲ والمشکاة ۸۹۴) او هر چې رکوع ده نو هغې کې بيا جمع نه ده راغلي لهذا هغې کې کله يوه دعاکله بله ويل په کار دی.

۸۴ - اَللهُمَّ اِنِّيْ أعوذبِرِضاکَ منْ سَخَطکَ وَبِمُعَافَاتکَ منْ عُقُوبَتکَ وَأعوذُ بِکَ مِنْکَ لا اُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْکَ اَنْتَ کَمَا اَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسکَ.

(مسلم ٤٨٦ ومالک جـ١ صـ٢٤١ وابوداؤد٨٧٩ والترمذي ٣٤٩١ والنسائي جـ٢ صـ٢٢٥ واحمد جـ٦ صـ٥٨ والمشکاة ٨٩٣).

**ترجمه**: ای الله تعالی زه پناه غواړم ستا په رضا ستا دغصي او غضب نه او ستا په روغتيا ستا دعذاب نه او پناه غواړم په تا باندې ستادعذاب نه -زه ستاپوره حمدنه شم بيانولي لکه چې تادخپل ځان بيان کړيدي.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايې مايوه شپه رسول الله ﷺ دخپلي بستري نه ورک کړو (غائب شو) نو هغه مالټولو نو زما لاس دهغي دخپودقدمونو په لاندې حصه ولږيدو او دی په مسجد کې ؤ چې دواړه قدمونه يې په سجده کې ؤ او دغه دعائي ويله.

۸۵ - اَللهُمَّ لَکَ سَجَدْتُ وَبِکَ آمَنْتُ وَلَکَ اَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِي للَذي خَلَقَهُ وَصَوَّرَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ تَبَارَکَ اللهُ اَحْسَنَ الْخَالقِيْنَ.

(مسلم ٧٧١ والترمذي٤٣١٧ وابوداؤد ٧٦٠ والنسائي جـ٢ صـ١٣٠ ).

**ترجمه**: ياالله تعالی ماتاته سجده وکړه او ماپه تا ايمان راوړي او تاته مي ځان سپارلي دی ځما مخ هغه تاته سجده وکړه چې دغه مخ يې پيداکړي او چاچه دهغه شکل جوړ کړيدي او هغه يې ښائسته کړي دی اوپه هغي کې غوږونه او سترګي څيري کړي دی پس برکت والا دی هغه ذات چې دټولو پيداکونکونه ښائسته پيداکونکي دی.

**وضاحت**: علي ﷺ وايې رسول الله ﷺ به چې کله سجده کوله نو دا دعا به يې ويله . او داحديث مخکې ذکر شويدي چې په دی کې فرض او نفل يو برابر دی.

## د دوه سجدو (جلسه) کې دعاګانې

**اَللهُم اغْفِرْلِي وَارْحَمْنِي واهْدِنِي وَعَافِنِي وارْزُقْنِي.**

(اسناده صحيح – اخرجه ابوداؤد ٨٥٠ والترمذي ٢٨٤ وابن ماجه ٨٩٨ والحاكم جـ١ صـ٢٦٢ والبيهقي جـ٢ صـ١٢٢ واحمد جـ١ صـ٣٧١ – وصححه الحاكم و وافقه الذهبي وهو في صحيح الترمذي ٢٨٤ وصحيح ابن ماجه – قال ابو عيسى وبه يقول الشافعي واحمد واسحاق يرون هذا جائزاً في المكتوبة والتطوع).

**ترجمه**: ای الله تعالی ماته ببنبه وکړه او په ما رحم وکړه او ماته هدايت وکړی او ماجوړکړي اومالره رزق راکړي.

**وضاحت**: عبدالله بن عباس ﷺ وايې رسول الله ﷺ به د دوه سجدو مينځ کې دغه دعا لوستله.

**٨٧ – رَبِّ اغْفِرْلِي – رَبِّ اغْفِرْلِي.**

(ابوداؤد ٨٧٤ والنسائي جـ٣ صـ٢٢٦ وابن ماجه ٨٩٧ وهو حديث صحيح – انظر الارواء للالباني (رح) ٣٣٥) والمشكاة ٩٠١).

**ترجمه**: ای ربه ماته ببنبه وکړه ای ربه ماته ببنبه وکړه.

**وضاحت**: حُذيفه ﷺ وايې رسول الله ﷺ به دغه دعا په جلسه (د دوه سجدومينځ) کې ويله.

**فائده**: امام ابن القيم (رح) وايي: درسول الله ﷺ طريقه به په جلسه کې اوږدول ددې جلسې ؤ په اندازه دسجدې چې ټول آحاديث په دی ګواه دی لکه صحيح بخاري کې دانس ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د دوه سجدو مينځ کې دومره کيناستلو تر دی چې مونږ به ګمان وکړو چې دده هير شولو اوداطريقه اکثرو خلکو دصحابه کرامو رضوا ن الله عليهم اجمعين دوخت نه روسته پريښودلې ده ،ددې وجي نه ثابت (رح) وايې انس ﷺ به يو کار کولوچه تاسوئي نه کوي هغه به د دوه سجدو مينځ کې دومره کيناستلو چې مونږ به ويل چې دوهمه سجده ترينه هيره شوه – پس هر هغه څوک چې په سنت فيصله کوي هغه فيصله کې وګرځوي هغه نه ګوري هغه چاته چې د سنت مخالفت کوي او نه پري کوم باک کوي (زاد المعاد جـ١ صـ٢٣٩).

## دتشهد دعاګانې

٨٨ – التَّحيَّاتُ لله والصَّلَوَاتُ والطَّيِّبَاتُ اَلسَّلامُ عَلَيْکَ اَيُّهَا النَّبِي وَرَحمَةُ اَللهِ وَبَرَكاتُهُ السَّلامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَاد الله الصالحِينَ اَشْهَدُ اَنْ لا إله إلا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَ مُحمداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

(صحيح البخاري ٦٢٣٠ ومسلم ٤٠٢ والمشكاة ٩٠٩).

**ترجمه**: ټولې دژبې عبادت او مونځونه (رحمتونه دعاګانې او عاجزيانې) او کلمات پاک خاص يو الله لره دی سلام دی وی په تا ای نبي ﷺ او دهغه رحمتونه او برکات دی وی ،سلام دی وی په مونږ او دالله تعالی په نيک

بنده ګانو باندې ګواهي کوم چې نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه او محمد ﷺ د الله تعالی محتاج بنده او رسول دی.

**وضاحت**: عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي مونږ ته رسول الله ﷺ دغه تشهد وخودلو اوداتشهد دټولونه غوره دی ځکه چې صحیحین پري متفق دی.

**۸۹ – التَّحيّاتُ الطَّيِّبَاتُ الصَّلَوَاتُ الزَّاكِيَاتُ لله – أشهد اَن لَّا اله إلا الله وَأنَّ مُحَمّداً عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ ، السّلَامُ عَلَيْکَ اَيهَا النَّبِيُ وَرَحْمَةُ الله وَبرَكَاتُهُ ، السّلامُ عَلَيْنَا وَعَلى عِبَادالله الصَّالحِيْن.**

(السنن الكُبری للبيهقي جـ۱ صـ۲۹۰ ومالک في المؤطاء جـ۱ صـ۵۷ رقم ۵۳ وسنده في غاية الصحة)

**ترجمه**: ټول لساني عبادت او بدني عبادتونه (مونځونه وغيره) دالله تعالی دپاره دی ټول ښه اخلاق او عملونه دالله دپاره دی ، ګواهي کوم په دی چې نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه اوګواهي کوم چې محمد ﷺ دالله تعالی محتاج بنده او دهغه رسول دی ،. سلام دی وی په تا ای نبي ﷺ او دالله تعالی رحمتونه او برکات دالله تعالی دی وی سلام دی وي په مونږ او دالله تعالی په نیکو بنده ګانو باندې.

**وضاحت**: عبدالرحمن بن عبدالقاري وايي چې ما دعمربن الخطاب نه واوريده چې په منبر ناست ؤ او خلکوته يې دغه تشهد خودلو.

**۹۰ – التَّحيّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لله – السّلَامُ عَلَيْکَ اَيهَا النَّبِيُ وَرَحْمَةُ الله وَبرَكَاتُهُ، السّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلى عِبَادالله الصَّالحِيْن اَشْهَدُ اَن لَّا إلَه إلا الله وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمّدَا رَّسوْ لُ اَلله.**

(مسلم ۴۰۳ والسنن الكبری ۲۸۹۱).

**ترجمه**: دژبې ټول عبادات – بدني او مالي عبادتونه خاص الله لره دی سلام دی وې په مونږ او په نیکانو بنده ګانو دالله تعالی باندې – ګواهي کوم چې حقدار دبنده ګۍ نشته سوا د یو الله تعالی نه او ګواهي کوم چې محمد ﷺ دالله تعالی رسول دی.

**وضاحت**: عبدالله بن عباس رضي الله عنه وایې مونږ ته به رسو ل الله ﷺ دا تشهد داسې خودلو لکه چې یو سورت دقرآن یې مونږ ته خودلو.

**فائده**: په صحیح آحادیثو کې ډیر قسمونه دتشهد د الفاظو راغلي دی خو بهتر یې هغه اول دابن مسعود رضي الله عنه تشهد دی چې بخاري او مسلم پرې متفق دی باقي نور ټول جائز دی.

## دتشهد نه بعد به درود وایې

**٩١ – اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ.**

(صحیح البخاري ٣٣٧٠ ومسلم ٤٠٢)

ترجمه یې مخکې شویده.

**وضاحت**: کعب بن عجرة رضي الله عنه وایې مونږ درسول الله ﷺ نه سوال وکړو ای دالله تعالی رسوله په تاسو مونږ څنګه درود ووایو ځکه الله تعالی مونږ ته امر کړیدی (په قرآن کریم کې یا تا په التحیاتُ کې) نو رسول الله ﷺ ورته

وويل ووايې دغه درود – اوبل روايت کې راځي چې يوصحابي تپوس وکړو مونږ څنګه په تا باندې په مونځ کې درود ووايو نو رسول الله ﷺ ورته دغه درود وخودلو.

**۹۲ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلى مُحَمَّدٍ وَاَزْوَاجِه وَذُرِّيَّته كَمَا صَلَّيْتَ عَلى آلِ اِبْرَاهِيْمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَاَزْوَاجِه وَذُرِّيَّتِه كَمَا بَارَكْتَ عَلى اِبْرَاهِيْم اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.**

(صحيح البخاري ۲۳٦۰ ومسلم ۴۰۷.

**ترجمه**: يا الله درود وليږي په محمد ﷺ او اولاد دهغه باندې لکه چې تا درود ليږلي دی په دابراهيم عليه السلام او برکت وليږي په محمد ﷺ او دهغوي په بيبيانو او اولاد دهغه باندې لکه چې تا برکت ليږلي دی په ابراهيم عليه السلام يقيناً ته ستائلي شوي او لوئي والا يې.

**وضاحت**: ابو حميد الساعدي رضي الله عنه وايي صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته وويل چې مونږ په تاڅنګه درود ووايو نو رسول الله ﷺ وويل چې دغه درود ووايې)
دا دواړه درودونه ابراهيمي دی کوم يوچه څوک لولي نو په سنت طريقه عمل دی. والله اعلم.

## دالتحياتُ او درود نه پس دعاګانې

**۹۳ – اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ أعوذ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ وَأعوذ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأعوذ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ وَأعوذ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالمَمَات.**

(مسلم ٥٩٠ والمشكاة ٩٤١ وابن ماجه ٣٨٤).

**ترجمه**: اې الله تعالی زه پناه غواړم په تا دجهنم عذاب نه او پناه غواړم په تا دقبر دعذاب نه او پناه غواړم په تا دفتني ددجال نه او پناه غواړم په تا دفتني دژوند او مرګ نه)

**وضاحت**: عبدالله بن عباس ﷺ وايې چې رسو ل الله ﷺ به دا دعا مونږ ته ښودله لکه چې يو سورت دقرآن صحابه کرامو ته ښائي اوويل به يې دا وايې – نو دا دعا ډيره ضروري ده تر دی چې بعضو سلفو په هغه چا مونځ دوباره کړي ؤ چې دا دعا يې نه وه ويلي اوګوره مسلم **٥٩٠** – لهذا ددې اهتمام په کاردی خوافسوس چې مليان هم ترينه خبر نه دی صرف اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتنا في الدنيا ...الخ يې ياده کړيده اوبس والله يهديناواياهم.

**٩۴ – اَللهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْماً كَثِيْراً وَلَا يَغْفِرُ الذُنُوبَ الّا اَنْتَ فَاغْفِرْ لِي مَغْفِرَةً مِنْ عِنْدِكَ وارْحَمْنِي اِنَّکَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرحِيم.**

(صحيح البخاري ٨٣٤ ومسلم ٢٠٧٥).

**ترجمه**: ياالله تعالی ماپه ځان ډير ظلم کړي او ښښنه دګناهونونه کوي مګر ته نو ماته ښښنه وکړه داسې ښښنه چې ستا دطرفنه وی اورحم وکړي په ما ځکه ته ښښونکي او مهربان يې).

**وضاحت**: خليفهٔ اول ابوبکر ﷺ وايې ما رسول الله ﷺ ته وويل ای رسول الله ﷺ ما ته يوه دعا وښايه چې په مونځ کې وايم نو رسول الله ﷺ ورته وويل وايه – اَللّٰهُمَّ اني ...الخ معلومه شوه چې دا بهترينه دعا ده

٩٥ - اَللهُمَّ اِنِّيْ أعوذ بِکَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَأعوذ بِکَ مِنْ فِتْنَةِ المَسِيْحِ الدَّجَّالِ وَ أعوذ بِکَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ اَللّهُمَّ اِنِّيْ أعوذ بِکَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَ الْمَغْرَمِ.

(صحیح البخاري ٨٣٢ ومسلم ٥٨٩ وابوداؤد ١٥٤٣ والترمذي ٣٤٨٩ واحمد جـ٦ صـ٥٧ والنسائي جـ٨ صـ٢٦٣ وابن ماجه ٢٨٣٨).

**ترجمه**: یاالله زه پناه غواړم په تاسره دعذاب دقبر نه او پناه غواړم په تاسره دمسیح دجال دفتني نه او پناه غواړم په تاسره دفتني دژوند او فتني دمرګ نه ، یا الله پناه غواړم په تا دقرض او ګناه نه.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها وایې رسول الله ﷺ په مونځ کې دغه دعا ویله نو یو صحابي ترینه پوښتنه وکړه ای رسول الله ﷺ دقرض نه ولې ډیره پناه غواړې، رسول الله ﷺ ورته وویل یو سړی چې قرضوړي شي نو خبرو کې دروغ وایې او وعده کې خلاف کوي ، نو ځکه زه دقرض نه ډیره پناه غواړم.

٩٦ - اَللهُمَّ اغْفِرْلِي مَاقَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ وَمَااَسْرَفْتُ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّي اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا اِلٰهَ اِلّااَنْتَ.

(مسلم ٧٧١ — وابوداؤد ٧٦٠ والترمذي ٣٤١٧ والنسائي جـ٢ صـ١٣٠ واحمد جـ١ صـ٩٥).

**ترجمه**: یا الله اوبښه ماته زما ګناهونه هغه چې ما مخکې کړیدي اوهغه چې روسته مې کړیدي او هغه چې پټ مې کړیدي او ښکاره مې کړیدي او هغه چې ما زیاتې کړیدي او هغه چې ته پرې ځما نه ښه پوهیږې ته مخکې کونکې یې او ته روسته کونکې یې نشته حقدار دبنده ګۍ سوا ستا نه.

**وضاحت**: علي ﷺ درسول الله ﷺ دمونځ صفت بیانوي وایې چې رسول الله ﷺ به دتشهد اوسلام تر مینځه دغه دعا لوستله.

**۹۷ – اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَالُکَ الْجَنَّةَ وَأعوذ بِکَ مِنَ النَّار.**

(حدیث صحیح – اخرجه ابوداؤد ۷۹۲ – ۷۹۶ احمد ج۳ ص۴۷۴ وابن ماجه ۹۱۰ وقال البوصیري في الزوائد :اسناده صحیح رجاله ثقات – وهو في صحیح ابن خزیمة ۷۲۵).

**ترجمه**: یا الله تانه سوال کوم دجنت او پناه غواړم په تاسره داورنه.

**وضاحت**: رسول الله ﷺ یو سړی ته وویل ته په مونځ کې څه وایې هغه وویل چې کله تشهد ووایم بیا وایم(اَللّٰهُمَّ اني اسئالک ...الخ) بیا دغه صحابي رسول الله ﷺ ته وویل زه ستا او دمعاذبن جبل په اواز نه پوهیږم یعني تاسو کومه دعا کوئ نو رسول الله ﷺ ورته وویل چې مونږ هم دجنت او جهنم دعا کوو چې د اول سوال او ددوهم نه پناه غواړو.

**فائده**:دصحیح احادیثو دتتبع نه معلوملیږي چې د التحیات نه روسته چې کومې خاصې دعاګانې راغلي دی په هغې کې اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتنا في الدنیا ...الخ نه دی راغلي البته که څوک یې وایې نو دعموماتونه استدلال کوي خو کومې چې مونږ ذکر کړي دا مسنوني دعاګانې دی چې جمع کولې یې هم شي که یوه وایې او که دوه او که ټولې. والله اعلم.

**۹۸ – اَسْتَغْفِرُ اللهَ** – دري ځله.

(مسلم ۵۹۱ والترمذي ۳۰۰ والنسائي ج۳ ص۶۸ واحمد ج۵ ص۲۷۵ والدارمي ۱۳۵۵ وابن ماجه ۹۲۸).

**٩٩ – اَللهُمَّ اَنْتَ السّلامُ وَمِنْکَ السَّلامُ تَبَارَکْتَ يَا ذَا الْجَلالِ وَ الْاِکْرَامِ.**

(مسلم ٥٩١ والترمذي ٣٠٠ والنسائي جـ٣ صـ٦٨ واحمد جـ٥ صـ٢٧٥ والدارمي ١٣٥٥ وابن ماجه ٩٢٨).

**ترجمه**: ای الله تعالی ته سلام يې او ستا دطرفنه سلامتيا ده برکت اچونکي يې ای خاوند دلوئي اوعزت.

**وضاحت**: ثَوْبان ﷛ فرمايي رسول الله ﷺ چې به کله دمونځ نه وګرځيدو نو دري ځلي به يې استغفر الله ويله او بيا به يې وويل اَللّهُمّ انت السلام ...الخ.

فائده – کوم ذکر چې په دی حديث کې دی همدومره سنت دی ، بعضو قصاصو او دمبتدعينو ځيني الفاظ پکي اضافه کړي دی – واليک يرجع السلام فحينا رَبّنَا بالسلام وادخلنا دار السلام – خو دا الفاظ دځانه جوړ شوي دی د رسول الله ﷺ نه دا ثابت نه دی لهذا الفاظ دشارع توقيفي دی که په دی خود ساخته ذکر عمل وشي ثواب پري مرتب نه دی نو ويل يې پکار نه دی ځکه ذکر عبادت دی او عبادت کې کم او کيف دشارع کار دی نه دبنده لهذا دا الفاظ ويل بدعت دی ددې وجې نه ملا علي القاري (رح) هم دا الفاظ مردود ګرځولي دی اوګوره مرقات جـ٢ صـ٣٥٨.

**١٠٠ – لَا إله إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيْکَ لَهُ، لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءِ قَدِيْر، اَللهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلامُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْکَ الْجَدّ.**

(صحيح البخاري جـ٢ صـ٢٧٥ ومسلم ٥٩٣ وابوداؤد ١٥٠٥ والنسائي جـ٣ صـ٣٠ وفي عمل اليوم والليلة ١٣٠ وابن السُني ١١٥ واحمد جـ٤ صـ٢٤٥ والدارمي ١٣٥٦).

**ترجمه**: دا دعا مخکي ذکر شويده او معنی يې هم شويده.

**وضاحت**: مغيرة بن شعبة ﷺ وايې رسول الله ﷺ چې به کله دمونځ نه فارغ شو نو دغه دعا به يې ويله.
دا دعا دفرض مونځ نه بعد ويل په کار دی او په پټه ويل په کار دی.

**تنبيه**: دمشکاة مصنف دا حديث دعبد الله بن الزبير ﷺ نه نقل کړيدی : کان رسول الله إذا سلم من صلاته يقول بصوته الاعلی –لا إله إلا الله ...الخ خو په اوچت اواز الفاظ مسلم کې نه دی راغلي اوګوره مسلم **۵۹۴** – خو مشکاة والا کيدی شي سهوه شوی وي ، لهذا اصل کې دا الفاظ نشته نو مشکاة نه ددې نقل کول بغير دکتلو نه اصل ته خطا ده – والله اعلم.

## ١٠١ – اللـــهُ اَکـــبرُ.

(الله ډير لوي دی) (صحيح البخاري ٨٤١ – ٨٤٢ ومسلم ٥٨٣ وابوداؤد ١٠٠٢ – ١٠٠٣ واحمد جـ١ صـ١٢٢).

**وضاحت**: دسلام نه بعد (الله اکبر) ويل بيا دري ځلي استغفر الله او بيا دغه مذکوره دعاګانې ويل سنت دی، عبد الله بن عباس ﷺ وايې چې ما به د رسول الله ﷺ مونځ اختتام په الله اکبر سره پژندلو – امام ابوداؤد دی حديث ته با ب لړولی دی (باب التکبير بعد الصلاة) – معلومه شوه چې الله اکبر په زور ويل دسلام نه بعد هم سنت دی ځکه که درسول الله ﷺ جهر نه

وايې نو ابن عباس رضي الله عنه ته بيا پته نه لږيده نو ددې نه انکار کول دا مکابره ده – او دا په تعليم حمل کول د حديث تحريف دی.

١٠٢ – لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيءٍ قَدِيْر، لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰه لَا إله إلا الله وَلَا نَعْبُدُ اِلَّا اِيَّاهُ ،لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ، لَا إله إلا اللّٰه مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْن وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْن.

(مسلم ٥٩٤ وابوداؤد ١٥٠٦ والنسائي جـ٣ صـ٧٠ واحمد جـ٤ صـ٤ والمشكاة ٩٦٣).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګۍ مګر يو الله تعالی دی ، هغه يو دی چې برخي والا ورسره نشته هغه لره بادشاهي ده او هغه لره صفتونه دی او هغه په هرشي قدرت والا دی ، نشته دګناه نه بچ کيدل او نشته طاقت په نيکي باندې مګر په الله تعالی سره ، نشته حقدار دبنده ګۍ سوا د الله تعالی نه او مونږ نه کوو بنده ګۍ سوا دالله تعالی نه دبل چا دهغه دپاره ټول نعمتونه دی او دهغه دپاره ټولي مهربانياني دی او ټول ښه صفتونه دی او دالله تعالی نه سوا بل حقد ار دبنده ګۍ نشته خالص کونکي يو هغه لره بلنه اګر که کافران يې بدګڼي).

**وضاحت**: دا دعا په پټه ويل په کار دی ځکه داچيرته صحيح حديث کې نشته چې رسول الله ﷺ به داپه زوره لوستله - صاحب دمستند اذکار صـ٨٢ دلته په ډيره غلطۍ کې اخته شويدي مخکي دعا نمبر ١٠٠ کې يې په مستند اذکار صـ٧٨ کې وايې چې دا دعا په پټه ويل په کاردی ځکه چې مسلم کې دا الفاظ نشته خو دلته بيا دصاحب مشکاة په نقل بيرته استدلال کوي چې مشکاة او شرح السنة کې بصوته الاعلی راغلي دی

ځنګه هغه دعا کې بصوته الاعلی ثابت نه دی لکه چې دا صحيح ده خو ځنګه بيا دلته ثابت شوه حالانکه دمشکاة هماغه حواله ده بله نه ده – فسبحان من لا يخطی.

## ۱۰۳- آية الكُرسي.

(ابن السُني ۱۲۵ وقد تکلم المحدثون على الحديث واطال فيه وصححه ابن كثير والسيوطي في اللالي جـ۱ صـ۲۳۰ وقال الألباني (رح) في الصحيحة جـ۲ صـ۶۶۱ – ۶۶۲ رقم ۹۷۲ على شرط البخاري وقال الحافظ ابن حجر (رح) حديث حسن غريب وقال في النكت على ابن الصلاح جـ۲ صـ۸٤۹ : وكحديث قرآءة آية الكُرسي دبر الصلاة فانه صحيح رواه النسائي وصححه ابن حبان وقال ابن عبدالهادي : لم يصب ابوالفَرَج والحديث صحيح اهـ من عجالة الراغب المتمنى جـ۱ صـ۱۷۸ رقم ۱۲۵).

**وضاحت**: ابواُمامة الباهلي رضي الله عنه وايي : چاچه دهر مونځ نه روسته آية الكرسي ولوستله نو دده او جنت مينځ کې به صرف مرګ پرده وي – (يعني دمرګ سره سم به جنت ته ځي).

## ۱۰۴ - اَللهُمَّ انِّيْ أعوذبِکَ منَ الْجُبْنِ وَأعوذ بِکَ منَ الْبُخْلِ وَأعوذ بِکَ مِنْ اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَأَعوذ بِکَ مِنْ فِتْنَةِ الدّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ.

(صحيح البخاري ۲۸۲۲ والترمذي ۳۵۶۲ والنسائي جـ۸ صـ۲۶۶ وفي عمل اليوم والليلة ۱۳۱ واحمد جـ۱ صـ۱۸۳ والمشكاة ۹۶٤).

**ترجمه**: ياالله پناه غواړم په تاسره دبزدلۍ نه او پناه غواړم دبُخل کولونه او پناه غواړم په تا سره د ذليل عمر نه او پناه غواړم پتاسره دفتني ددنيا او دعذاب قبرنه.

**وضاحت**: سعد بن ابي وقاص ﷺ وايي رسول الله ﷺ به دهر فرض مونځ نه روسته دا کلمات ویل- سعد بن ابي وقاص ﷺ به خپلو بچوته داکلمات ښودل – نو دا ډير بهترين کلمات دی – دسنتونه يې روسته ويل چيرته ثابت نه دی.

۱۰۵ – **سُبْحَانَ الله** ۳۳ ځله – **اَلْحَمْدُلله ۳۳** ځله- **اللهُ اَکْبَـــــر۳۴** ځله – اويا **الله اکبر ۳۳** ځله او ورسره – **لاَ إِلَه إلا الله وَحْدَهُ لا شَرِيْکَ لَهُ، لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُل شيءٍ قَدِيْر** يو ځای کړي.

(مسلم ۵۹۷ والمشکاة ۹۶۷ والبخاري ۸۴۳ عن ابي هريرة بلفظ آخر).

**وضاحت**: ابوهريرة ﷺ وايي چاچه دهر مونځ نه روسته **۳۳** ځله سبحان الله **۳۳** ځله الحمد لله او **۳۴** ځله الله اکبروويلو چې دا **۹۹** کرته شول په لا إله إلا الله وحده شريک له ، له الملک وله الحمد وهو على کل شيءقدير سلم کرت پوره کړو نو ګناهونه به يې معاف شي اګر چې د درياب دځګ همره وي.

**فائده**: دغه تسبيحات لس (۱۰) لس (۱۰) ځلي هم راغلي دی دصحيح البخاري **۸۴۳** په روايت کې – که په هر يو عمل کوي سنت طريقه ده – خو شايد چې لس ځله – دوخت دکموالي په وجه وې که وخت دچاسره نه وي نو لس ځله ويل په کار دي او که وخت ډير ؤ نو **۳۳** ځله ويل په کار دی خوچه پاتې نشي.

۱۰۶ – **سورة الاخلاص او معوذتين**.

(صحيح – اخرجه ابوداؤد ۱۵۲۳ والنسائي جـ۳ صـ۶۸ واحمد جـ۴ صـ۲۰۱ وابن السُني ۱۲۳ وصححه ابن حبان ۴۷ ۲۳ والترمذي ۳ – ۲۹ وصححه الحاکم جـ۱ صـ۲۵۳ ووافقه الذهبي (رح)).

**وضاحت**: عُقبة بن عامر ﷺ فرمايي چې ماته رسول الله ﷺ امر کړي چې : اَنِ اقراء بالمعوذات دبر کل صلاة – يعني چې زه دهر مونځ نه روسته معوذ ات ووايم چې قل أعوذبرب الفلق – قل أعوذبرب الناس – قل ياايها الکافرون – او قل هو الله أحد – مراد دی – البته دجامع الترمذي روايت کې بيا معوذتين دی چې صرف همدا ترينه مراد دی – او دابوداؤد حديث صحيح دی جمع پکي راغلي ده چې دغه څلور سورتونه مراد دی ځکه دا الکافرون سورت کې دشرک او مشرکينو نه براءت دی – سورة الاخلاص کې اظهار د توحيد او اقرار دتوحيد دی او معوذتين کې دهر شرنه پناه غوښتل دی.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ٨١ کې د سورت اخلاص او معوذتين حواله په ترمذي ٢٩٠٣ ورکړې ده، باب ماجاء في فضل قاري القرآن) . خو سورة اخلاص پکي نشته .

١٠٧ – **اَللهُمَّ اِنِّيْ أعوذ بِکَ مِنَ الْکُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ.**
(سنن النسائي ٥٤٦٥ –).

**ترجمه**: ياالله زه په تاسره پناه غواړم دکفر او فقرنه او دقبر دعذاب نه.

**وضاحت**: ابن ابي بکرة دخپل پلار نه اوريدلي دی چې دغه الفاظ به يې دهر مونځ نه روسته ويل او خپل ځوي ته به يې ويل چې ددې ويل لازم ونيسه ځکه رسول الله ﷺ دا دمونځ نه روسته نه دی پريښي.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو رقم دنسائي ډير غلط ورکړي زه نه پوهيږم چې داپه توک ليکي که څنګه ځکه دنسائي رقم ٥۴٢٥ دی اوده

رقم **۵۰۴۸** ورکړي نو که په طبع کې فرق وې نو **۴۰۷** ارقام بیا څنګه فرق راشي –والله اعلم.

**۱۰۸ – اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْأَلُکَ فِعْلَ الْخَيرَاتِ وَتَرْکَ الْمُنْکَرَاتِ وَحُبَّ الْمَسَاکِيْنِ وَاَنْ تَغْفِرَلِي وَتَرْحَمَنِي وَإِذا اَرَدتَّ فِتْنَةً فِي قَوْمٍ فَتَوَفَّنِي غيرَ مَفْتُونٍ وَاَسْأَلُکَ حُبَّکَ وحُبَّ مَنْ يّحِبُّکَ وَحُبَّ عَمَلٍ يُقَرِّبُنِي اِلَى حُبِّکَ.**

(اسناده صحيح اخرجه احمد جـ١ صـ٣٦٨ والترمذي ٣٢٣٣ من رواية ابن عباس وطريق معاذبن جبل ﷺ اخرجه احمد جـ٥ صـ٢٤٣ والترمذي ٢٣٣٥ وقال هذا حديث صحيح – انظر المشكاة ٧٢٦).

**ترجمه**: ای الله زه تانه دنیکو کارونو سوال کوم او سوال کوم دپریښودلو دګناهونو او مینه دمسکینانو سره او سوال کوم چې ښنه وکړی ماته او رحم وکړی په ما باندې او کله چې ته په یو قوم دامتحان اراده وکړی نو ما واخله - پداسي حال کې چې په ما باندې امتحان رانشي او غواړم ستانه ستا محبت او دهغه چا محبت چې تاسره محبت کوي او محبت دهغه چاچه ستا محبت ته مي نزدی کړي.

**وضاحت**: حدیث دمعاذبن جبل ﷺ کې راځي چې الله تعالی رسول الله ﷺ ته وویل ای محمد ﷺ چې کله مونځ وکړی نو دغه دعا وایه – معلومه شوه چې دابهترینه دعاده چې الله تعالی یې دمحمد رسول الله ﷺ دپاره خوښوي نو اشاره ده عظمت شان ددې دعاته - نو بایدچه مونږ هم پري عمل وکړو ترڅودغه فضیلت الله تعالی څمونږ په نصیب کړي آمین یارب العالمین.

**۱۰۹ - اَللّٰهُمَّ اَعِنِّي عَلَى ذِکْرِکَ وَشُکْرِکَ وَحُسْنِ عِبَادَتِکَ.**

(ابوداؤد ١٥٢٢ والنسائي جـ٣ صـ٥٣ وفي عمل اليوم والليلة ١٠٩ وابن السُني ١٨٨ – والحاكم جـ١ صـ٢٧٣ واحمد جـ٥ صـ ٢٤٥ وابن حبان ٢٣٤٥ واسناده صحيح رجاله كلهم ثقات وصححه الألباني (رح) في الكلم الطيب ١١٤).

**ترجمه**: ياالله ته په خپل ذکر – شُکر او ښائسته عبادت باندې زمامدد وکړه)

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو – مذکوره دعا چې ډيره مشهور هم ده او صحيح هم ده نه ده ذکر کړي فسبحان من لا ينسى. والله اعلم.

## دُعاء قُنُوت

**اَللهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنِي فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنِي فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِکْ لِي فِيْمَا اَعْطَيْتَ وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَاِنَّکَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضَى عَلَيْکَ اِنَّهُ لَا يَذِلّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَايَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَکْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ.**

(اسناده صحيح – اخرجه احمد جـ١ صـ١٩٩ والدارمي جـ١ صـ٣٧٣ وابوداؤد ١٤٢٥ والترمذي ٤٦٤ والنسائي جـ٣ صـ٢٥٨ وابن ماجه ١١٧٨ والحاكم جـ٣ صـ١٧٢ والبيهقي جـ٢ صـ٢٠٩ والمشکاة ١٢٧٣ – انظر الارواء ٤٢٩).

**ترجمه**: يا الله هدايت وکړه ماته په هغه چاکي چې تا ورته هدايت کړيدي او روغ وساته ما په دنيا او آخرت کې په هغه خلکو کې چې تاروغ ساتلي دی او دوستي وکړه ماسره په هغه خلکو کې چې تا ورسره دوستي کړي ده او برکت واچوه ما دپاره په هغه څه کې چې تا ماته راکړي دی او وساته ما دشر دفيصلي ستانه او يقيناً ته فيصله کوي او ستا په مقابله کې څوک فيصله نشي کولي يقيناً نه ذليل کيږي هغه څوک چې ته ورسره محبت

اوکړي اونه عزتمندکيږي هغه څوک چې ته ورسره دښمني وکړي ، ای ربه ته برکت اچونکي يې او ته اوچت يې.

**وضاحت**:حسن بن علي ﷺ وايې ماته رسول الله ﷺ دغه کلمات وښودل چې په قنوت الوتر کې يې وايه معلومه شوه چې دا دعا د وترو دقنوت ده او صحيح حديث کې ثابت دی او بله دعا دقنوت دپاره په صحيح حديث کې ثابت نه ده . البته يوه بله دعا ده چې هغه په صحيح حديث کې راځي خو هغه بيا يا په وترو قنوت او يا دوترو دسلام نه بعد راغلي ده چې لاندې ذکر کيږي.

**١١١ - اَللهُمَّ انِّيْ أعوذبِرِضَاکَ منْ سَخَطکَ وَبِمُعَافَاتکَ منْ عُقُوبَتکَ وَ أعوَذ بِکَ مِنْکَ لَا اُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْکَ اَنْتَ کَمَا اَثْنَيتَ عَلَى نَفْسکَ.**

(اسناده صحيح – اخرجه احمد ج١ ص٩٦ وابوداؤد ١٤٢٧ والترمذي ٣٥٦٦ والنسائي ج٣ ص٢٤٨ وابن ماجه ١١٧٩).

**ترجمه**: ای الله تعالی زه پناه غواړم ستا په رضا ستا دغضب نه او ستا په عافيت سره ستا دعذاب نه او پناه غواړم په تاسره ستا دعذاب نه – ستا پوره صفت نشم کولي هغه چې تا دځان صفت کړي دی.

**وضاحت**: علي ﷺ فرمايې رسول الله ﷺ به دوترو په آخرکي دغه دعا لوستله ، معلومه شوه چې داهم دقنوت الوتر دعا ده ،لکه ابوداؤد کې روايت دی اوګوره ابوداؤد ۱۴۲۷ ، اوسنن النسائي ۱۷۴۷).

**تنبيه**: صاحب دمستند اذكارو وايې چې مذكوره دعا دسلام ګرځولونه بعد هم راغلي ده : إذا فرغ من وتره وتبوأ مَضجعه، او حواله يې دمرعات وركړې ده ، خو په سنن النسائي كې دوترو دفراغت نه دغه دعا ثابت نه ده دسنن النسائي باب التسبيح بعد القراءة من الوتر كې صرف سبحان الملک القدوس راغلي دی . اوګوره سنن النسائي ۱۷۵۰ - ۱۷۵۱ - ۱۷۵۲ - خوكيدی شي چې ملاصاحب دمرعات والا تقليد كړي وي او هغه خطاء شوي دی. والله اعلم.

## د وترونه بعد دعاګانې

۱۱۲ - سُبْحَانَ الْمَلِکِ الْقُدُّوسِ.

(اسناده صحيح – اخرجه احمد جه ص۱۲۳ وابوداؤد ۱۴۳۰ باب الدعاء بعد الوتر - والنسائي ۱۷۵۲ والمشكاة ۱۲۷۴).

**ترجمه**: پاكي ده الله تعالى لره چې پاک بادشاه دی.

**وضاحت**: أُبَي بن كعب ﵁ وايې رسول الله ﷺ چې به كله د وترونه سلام وګرځولو نو دغه دعا به يې درې ځله ويله - او په روايت دنسائي كې عبد الرحمن بن ابزي عن ابيه كې راځي چې په دريم ځل ددغه اذكار به يې اواز اوچت كړو ، اوګوره سنن النسائي ۱۷۵۲ - يرفع بها صوته.

**تنبيه**: صاحب دمستند اذكارو دلته هم بيا په ړوند تقليد كې واقع شويدي وايې چې په دريم ځل به يې ددغه دعا سره رب الملائكة والروح يو ځای كړل اولړ په اوچت اواز به يې ويله حواله يې دابوداؤد او نسائي او مشكاة وركړيده حالانكه په دی درې واړو كتابونو كې دغه الفاظ نشته بله

پوښتنه داده چې دغه الفاظ به یې په لړ اوچت اواز ویل کیږي دا کوم حدیث کې دی؟ حدیث کې خو دغه ذکر دریم ځل په یرفع بها صوته سره راغلي دی نو د یرفعُ بها صوته معنی په لړ اوچت اواز سره تحریف نه دی؟ اوګوره مستند اذکار ۸۴).

**تنبیه ثاني**: صاحب دمستند اذکار ص۸۵ کې یوه دعا دوترونه بعد ذکر کړي (اَللّٰهُمّ إني أعوذ بمعافاتک من عقوبتک وأعوذبرضاک من سخطک ...الخ او حواله په ابوداؤد ترمذي او النسائي ورکړي خو مونږ دري واړه کتابونه ابوداؤد کتاب الوتر مکمل دترمذي کتاب الدعوات مکمل او النسائي قیام اللیل مکمل وکتلو خو دغه دعا پکې نشته چې دا یې دکوم ځای نه راوړیده؟ ټولوهغه دعا چې الدعاء بعد الوتر – سبحان الملک القدوس ذکر کړي اوبس. والله اعلم.

## دبعضو مخصوص مونځونو دعاګانې

## دسحر دمانځه نه پس ذکر

۱۱۳ – اَللّٰهُمَّ بِکَ اُحَاوِلُ وَبِکَ اُصَاوِلُ وَبِکَ اُقَاتِلُ.

(حدیث صحیح: اخرجه ابو یعلی کما في نتائج الاذکار ج۲ ص۳۱۷ واحمد ج٤ ص۳۳۲ ومن طریقة الضیاء المقدسي في المختار ج۸ ص٦۱ والدارمي ج۲ ص۲۱٦ وابن حبان ۲۰۲۷ والطبراني في المعجم الکبیر ۷۳۱۸ والدعاء ٦٦٤ وابونعیم في الحلیة ج۱ ص۱٥٥ وابن السُني ۱۱۸ والبیهقي في السنن الکبری ج۹ ص۱٥۳ والنسائي في عمل الیوم واللیلة ٦۱٤).

**ترجمه**: یا الله تانه زه دخپلو کارونو کامیابي غواړم او ستاپه طاقت او مدد سره به په دښمنانو حمله کوم او هم ستا په مددسره به جهاد کوم)

**وضاحت**: صُهيب ﷺ وايې: رسول الله ﷺ به دسحر مونځ نه بعد خپلي شونډي مبارکي خوزولي نو ما ورته وويل اى رسول الله ﷺ ته خپلي شونډي مبارکي خوزوي ته څه وايې هغه وويل زه دغه دعا وايم – معلومه شوه چې داهم بهترينه دعاده چې دفرض مونځ او سحر پوري خاص ده.

**تنبيه**: صاحب دمستند اذکارو صـ۹۰ دسحر دمونځ نه بعد يوه دعا نقل کړيده چې په سفر کې ويل کيږي : اَللّهُمّ اصلح لي ديني الذي جعلته لي عصمة امري ...الخ او په ابن حبان يې حواله ورکړيده اوګوره صحيح ابن حبان ۲۰۲۰۴ – خو حديث ضعيف دى سندکي ابو مروان دى دعطاء پلار – امام ذهبي (رح) وايې قال النسائي ليس بالمعروف – المغني في الضعفاء رقم ۷۷۲۴ ).

## په سفرکې دصبح صادق ليدو وخت کې دعا

۱۱۴ – سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَنِعْمَتِهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنا رَبَّنَاصَاحِبْنا فَاَفْضِلْ عَلَيْنا عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النارِ.

(الحاكم في المستدرک جـ۱ صـ۴٤۷ رقم ١٦٣٦ وصححه ووافقه الذهبي (رح)).

**ترجمه**: شاهدي وکړه شاهدي کونکي دالله تعالى دصفت او ثناء او دهغه نعمت او په مونږ باندې دښکلي احسان ، اى ربه زمونږ سره ملګرى شه او په مونږ احسان وکړه د دې دعا په کولو سره زه دجهنم داور نه په الله سره پناه غواړم.

**وضاحت**: ابوهُريره ﷺ وايي: رسول الله ﷺ چې به کله په سفر کې ؤ او صبح صادق به ورته ښکاره شو نو دغه دعا به يې ويله – درې ځله او اواز به يې هم اوچتولو يعني په اوچت اواز يې ويله – والله اعلم.

## چې کله لمر راوخيژي نو کومه دعا ويل پکار دی؟

١١٥ – اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي وَهَبَ لَنَا هَذَا الْيَوْمَ وَاَقَالَنَا مِنْ عَثَرَاتِنَا.

(موقوف صحيح السند – اخرجه ابن السُني ١٤٩ وابن حجر في نتائج الافكار جـ٢ صـ٤١٥ قال ابن حجر هذا موقوف صحيح السند).

**ترجمه**: ټول صفتونه دکمال هغه الله تعالى لره دی چې مونږته يې ورځ راکړه او زمونږ خوئيدل يې پکې معاف کړه.

**وضاحت**: عبد الله بن مسعود ﷺ خپلي وينځي ته وويل چې کله لمر راخيژي نو ماته ووايه نو چې کله لمر راوختلو نو ابن مسعود ﷺ دغه دعا وويله.

## چې کله نوی میاشت راوخيژي

١١٦ – اَللّٰهُمَّ اَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالأَمْنِ وَالْاِيْمَانِ وَالسَّلَامَةِ وَالاِسْلَامِ رَبِّي وَرَبُّكَ اللّٰهُ.

(صحيح اخرجه الترمذي ٥٤٥١ وابويعلى في مسنده ٦٦١ والفياء المقدسي في الاحاديث المختارة ٨٢٠ والطبراني دفي الدعاء ١٢٢٢٣ واحمد جـ١ صـ١٦٢ والدارمي جـ٢ صـ٥ والبغوي في شرح السنة جـ٥ صـ١٢٨ رقم ١٣٣٥ والبيهقي في الدعوات الكبير جـ٢ صـ٢٤٢ وقال ابن حجر هذا حديث حسن (الفتوحات الربانية جـ٤ صـ ٣٢٩ وانظر الصحيحة جـ٤ صـ٤٣١) وابن السُني ٦٤٢).

**ترجمه**: اى الله تعالى راوخيژي دغه مياشت په مونږ په بركت ايمان او سلامتيا سره او په اسلام كې رب زما اورب ستا الله تعالى دى.

**۱۱۷ - اَللهُمَّ اَهلَّهُ عَلَينَا بِالأَمْنِ وَالايمَانِ وَالسّلامَةِ والاسْلامِ وَالتَّوفِيْقِ لِمَا تُحبُّ وَتَرْضَى ، رَبُنَا وَربّكَ اللهُ.**

(حسن اخرجه الدارمي ۱۶۹۳ وابن حبان ۸۸۵ والنووي في الاذكار ٤٧٤).

**ترجمه**: ياالله دا مياشت په مونږ باندې دامن ، ايمان ، سلامتيا، اوداسلام په حالت كې راوخيژوه اودهغه عملونو په توفيق سره چې ته يې خوښوي او ته پرې راضي كيږي دغه مياشت راوخيژوي.

**وضاحت**: عبدالله بن عمر ﷛ وايې رسول الله ﷺ چې به كله نوي مياشت وليدله نو اول به يې تكبير (الله اكبر) وويلو او بيا به يې دغه دعا وويله ، نو معلومه شوه چې الله اكبر په اول كې هم ثابت دى.

## كله چې سپوږمۍ راوخيژي

**۱۱۸ - أعوذبِاللهِ مِنْ شرِهَذَا الغَاسِقِ إذا وَقَبَ.**

(حسن – وصحيح بطرق : اخرجه النسائي في عمل اليوم والليلة ۳۰۶ وابن السُني ٦٤٩ واحمد جـ٦ صـ٦١ والترمذي ۳۳٦٦ والطياليسي ۱۹۹٥ والبغوي في شرح السنة ۱۳٦٧ والحاكم جـ۲ صـ٥٤٠ وابويعلى ٤٤٤٠ – وصححه الحاكم ووافقه الذهبي وقال الجوزقاني هذا حديث صحيح (الاباطيل والمناكير ۷۲۲) وصححه الترمذي وابن كثير وحسنه ابن حجر في فتح الباري جـ۸ صـ ۷٤۱).

**ترجمه**: پناه غواړم په الله پورې دشر د دې ښويدونكې شپې نه.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها وايې رسول الله ﷺ دلاس نه ونيولم نو په دغه وخت كې سپوږمۍ راوختله نو وئي ويل – پناه غواړم دشر ددې راښويدونكي نه»

## دلمر او سپوږمۍ دتوريدو وخت كې دعا

**وضاحت**: دعربي په اصطلاح ديته كسوف او خسوف وايې ددې دپاره خاص مونځ دی چې د عامو مونځونو نه تفاوت لري ځكه په دې كې ركوعګاني اوسجدي ډېرې دی البته كومه مخصوصه دعا نه ده راغلي ، عائشه رضي الله عنها وايې لمر درسول الله ﷺ په زمانه كې تور شوي ؤ نو هغه مونځ وكړو بيا يې حمد وويلو بيائي وويلو ، لمر اوسپوږمۍ دچا مړه كيدو او يا پيداكيدلو په وجه تندر نه نسي «بلكه دا دالله تعالى دقُدرت يو نښانه ده چې خپل بنده ګان پري ويروي» نو چې كله تاسو دا ووينې نو الله اكبر وايې او دالله تعالى نه دعا كوئ ، مونځونه كوئ ، صدقي وركوئ ،«اوګوره صحيح البخاري ۱۰۴۴ او مسلم ۹۰۱» لهذا هر افت كه وي كه هغه تيزباران وي زلزله وي سخته سيلۍ او باد وي همدغه كارونه يعني مونځونه – دعاګانې –صدقه وركوئ – استغفار ويل په كاردی – والله اعلم .

## داستخارې دمونځ دعا

۱۱۹ – اَللهُمَّ اِنِّيْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَاَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَاَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا اَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا اَعْلَمُ وَاَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ، اَللّهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَ هَذَا الْاَمْرَ

**خَيْرٌ لِي فِي دِيْنِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي وَعَاجِلِه وآجِلِه فَاقْدُرْهُ لِي وَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيه وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الْأَمْرَ شَرٌّ لِي فِي دِيْنِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي وَعَاجِلِه وآجِلِه فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ أَرْضِنِي بِه.**

(صحيح البخاري ١١٦٧ وفي التوحيد ٧٣٠٩ والترمذي ٤٧٠ والنسائي جـ٦ صـ٨٠ وفي عمل اليوم والليلة ٤٩٨ وابن السُني ٥٩٧ واحمد جـ٣ صـ٣٤٤ وابن ماجه ١٣٨٣ والسنن الكُبرى للنسائي ٥٥٨١ وابن حبان ٨٨٧ وشرح السنة ١٠١٦ والسنن الكبرى للبيهقي جـ٥ صـ٢٤٩).

**ترجمه**: يا الله تانه زه دخيرطلب کوم ستا په علم سره اوقدرت طلب کوم ستانه ستا په قدرت سره سوال کوم ستانه دمهربانۍ ستانه ځکه ته قدرت والائي اوزه نه يم ته پوهيږي اوزه نه پوهيږم او ته پوه يې په پټو شيانو ، ياالله تعالی کچيرته تاته دامعلومه وي چې داکار زما دپاره غوره دی په دين او دنيا کې او دانجام په لحاظ او في الحال او روسته زمانه کې، پس مقرر يې کړه ماله او بيا پکي برکت واچوي په دی کې اوکچيرته تاته معلومه وي چې دا کار مالره بد وي په دين او دنيا زما کې او په اخري انجام دکار زما کې اوس وي که روسته زمانه کې وي نو داکار واړوه زمانه او ماهم واړوي ددې کار نه او مقرر کړي مالره خير چيرته وي ، بيامي په دی خوشحاله کړه).

**وضاحت**: جابربن عبدالله ﷺ وايي رسول الله ﷺ به مونږ ته په ټولو اُمورو کې داستخاري تعليم راکولو لکه چې ديوسورة تعليم مونږته راکوي ويل به يې کله چې تاسو ديوکار (مباح) قصد وکړئ نو دوه رکعته مونځ دی وکړي (نفلي) بيادی دغه دعا ووايي).

**تنبيه**: دا استخاره دهر مباح كار دپاره كولي شئ چې دواړه طرفته كارونه وې او حلال او جائز كارونه وې نو دا استخاره دى وكړي عوامو كې دا مشهوره ده چې خوب به ويني چې داكار وكړه اويا نه داغلطه خبره ده اونه ورته شپه شرط دى بلكه دورځي دهر وخت چې يې وغواړي كولي شي ، بعضو رواياتو كې اوه ځله استخاره راغلي ده چې انس ﷺ ته رسول الله ﷺ وويل چې استخاره اوه كرت وكړه خو هغه روايت ابن السُني ۲۰۳ ذكر كړي خو سندئي واهي دى، عبد الله بن الحميري پكي دى محدثين وايې باطل روايات به يې دثقاتو نه نقل كول ، عيني وايې دا باطل او ساقط حديث دى (عمدة القاري ج۷ ص۲۲۵).

لهذا مؤمن مسلمان ته په كارده چې كله ديو ښه كار اراده وكړي په سنت طريقه دى عمل وكړي او استخاره دى وكړي.

## دخوراك او څكاك دعاګانې

۱۲۰ – **بِسْمِ اللهِ** (فقط): دالله تعالى په نوم شروع كوم.

(صحيح البخاري ۵۳۷۶ ومسلم ۲۰۲۲ وابوداؤد ۳۷۷۷ والترمذي ۱۸۵۸ وابن ماجه ۳۲۶۷ والنسائي ۲۷۸).

**وضاحت**: دطعام دشروع په وخت كې د رسول الله ﷺ نه صرف بسم الله ثابت ده او بس پوره ويل يې چيرته نه دى ثابت اګر چې امام نووي وايې چې افضل پوره بسم الله ويل په كار ده خودليل يې نه دى ذكر كړي، عمرو بن ابي سلمة ﷺ وايې ماته رسول الله ﷺ وويل بسم الله induction ووايه او په ښي لاس خوراك كوه او دخپلي مخي نه دى خوراك كوه.

او ابوداؤد او ترمذي دغيره كې د عائشه رضي الله عنها نه روايت دى هغه وايې چې كله يو دتاسونه خوراک كوي نو دالله تعالى نوم دى پري يادكړي او كه ترينه اول كې بسم الله هيره شي نو ودى وايې بسم الله اولَهُ وآخِرَهُ (ابوداؤد ۳۷۶۷ والترمذي ۱۸۵۹ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۲۸۱ وهو حديث صحيح.

معلومه شوه چې پوره بسم الله الرحمن الرحيم چيرته صحيح احاديثو كې ثابت نه دى ، والله اعلم.

**تنبيه**: په تبليغي جماعت كې او عامو مسلمانانو كې دطعام خوړلويوه دعامشهوره ده بسم الله وعلى بركة الله ، خو دا ثابته نه ده البته دحديثو كتاب المستدرک للحاكم ج۴ ص۱۰۷ رقم ۷۰۸ كې فكلوا بسم الله وبركة الله راغلي دى خو يو راوي پكې دى چې عبد الله بن كيسان دى امام ذهبي (رح) وايې ضعفه ابوحاتم المغني في الضعفاء ج۱ ص۵۲۰ – دى منكر الحديث هم ؤ – (الكامل ج۴ ص۱۵۴۷ والميزان ج۲ ص۴۷۵) لهذا صرف په بسم الله اكتفاء كول په كار دى ځكه الفاظ دشارع توقيفي دى دامونږ باربار ويلي دى.

## دخوراک نه روسته دعا

۱۲۱ – اَلْحَمْدُ للهِ كَثِيْراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيْهِ غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَلَا مُوَدَّعٍ وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا.

(صحيح البخاري ٥٤٥٨ ابوداؤد ٣٨٤٩ – الترمذي ٣٤٥٢ والنسائي ٢٨٤ واحمد ج٥ ص٢٥٣).

**ترجمه**:ټول صفتونه دکمال الله تعالی لره دی ډیر پاک او برکتونو والا ، ای الله تعالی نه دی کافي زمونږ داطعام او نه دی رخصت کړی شوی او نه تري بي پرواهي ده زمونږ ربه.

**فائده**: دغیر مکفي یو معنی داده چې یاالله تعالی ددې طعام دنعمت نه انکار والا اویا ناشکره مونږ نه یو ځکه چې دا یو نعمت دی او دنعمت ناشکري مونږ نه کوو ، بلکه مونږ ددې مشکور یو ، اوګوره الاذکار للنووي ص۳۷۹ رقم **۵۷۸**.

## ۱۲۱ - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذي اَطْعَمَ وَسَقَى وَسوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجاً-

(صحيح اخرجه ابوداؤد ۳۸۵۱ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۲۸۵ وصححه ابن حبان ۱۳۵۱ – موارد – وابن السُني ٤٧١ وابو يعلى في مسنده كما في نتائج الافكار جـ۲ صـ۲٦٥ والبيهقي في الدعوات الكبير جـ۲ صـ۲۲٦ والسنن الكبرى للنسائي ٦٨٩٤ وصححه الألباني في الصحيحة جـ۲ صـ۷۰۵ - وصححه النووي في الاذكار ٥٩٦ وصححه الحافظ ابن حجر (رح) وغيره

**ترجمه**: ټول صفتونه دکمال خاص یو الله تعالی لره دی چې خوراک او څکاک یې راکړه او تیرئي کړو زما دغه خوراک او لاره یې دوتلوورلره وګرځوله-)

**وضاحت**: ابوایوب الانصاري ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ به کله خوراک او یا اوبه څکلي نودغه دعابه یې ویله.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ۹۷ کې وایې چې کله به دسترخوان درسول الله ﷺ دمخي نه اوچت شونو الحمدلله به یې ویله او دا دعائي ځانته ذکر کړي خو ده چې حواله په مشکاة ورکړي مشکاة کې دغه الحمد

لله دمخکي دعاسره یوځای ده چې الحمدلله حمداً کثیراً طیباً ...الخ داچیرته ځانته نه ده راغلي څکه ابو اُمامة ﷺ وايي : ان النبي ﷺ کان إذا رفع مائدته قال الحمد لله حمداً کثیراً الخ دانه چې دا ځانته دعاده – اوګوره مشکاة رقم ۴۱۹۹) لهذا دده مقلدين دی خبروې چې دا ځانته دعا نه ده .

## ۱۲۲ – اَللهُمَّ اَطْعَمْتَ وَسَقَيْتَ ،اَغْنَيْتَ وَاَقْنَيْتَ وَهَدَيْتَ وَاَحْيَيْتَ فَلَکَ الْحَمْدُ عَلَى مَا اَعْطَيْتَ.

(صحيح – اخرجه ابويعلى في مسنده كما في اتحاف الخيرة المهرة ٤٩٢٨ واحمد جـ٤ صـ٥٢ وابو نعيم في معرفة الصحابة ٧٢٥٣ والنسائي في الكبرى ٦٨٩٨ وابن حجر في نتائج الافكار جـ٢ صـ٢٧٩ – قال الألباني (رح) في الصحيحة جـ١ صـ١٥٢ – ٧١ وهذا اسنادصحيح رجاله كلهم ثقات رجال مسلم – واخرجه ابن السُني ٤٦٦ – قال النووي في الاذكار ٥٩٧ وروينا في سنن النسائي وكتاب ابن السُني بسند حسن).

**ترجمه**: يا الله تا ماته خوراک او څکاک راکړه او تازه غني کړم او تا صبر او قناعت راکړو او هدايت دی راکړو ، ته ژوندي کول کوي پس تالره صفتونه دی په هغه څه چې تا ماته راکړي دی.

**وضاحت**: عبد الله بن جُبير ﷺ درسول الله ﷺ دهغه خادم حديث بيانوي چې درسول الله ﷺ اته (۸) کاله يې خدمت کړي چې ده درسول الله ﷺ نه اوريدلي دی چې کله به هغه ته طعام نزدې شونو ويل به يې بسم الله – او چې کله په فارغ شو نو ويله به يې دغه دعا). د دې نه معلومه شوه چې داهم دطعام نه فارغيدو دعاده.

**تنبيه**: عوامو کې مشهوره دعا دطعام نه روسته - الحمد لله الذي أطعمنا وسقانا وجعلنا من المسلمين - چې ترمذي **٣٤٥٧** ابن ماجه **٣٢٨٣** ابوداؤد **٣٨٥٠** وغيره روايت کړي دی خو حديث ضعيف دی سند کې اسماعيل بن رياح السلمي دی امام ذهبي وايي پته نشته دا څوک دی حديث يې مضطرب دی او رياح چې داسماعيل پلار دی داهم مجهول دی بيا امام ذهبي دغه حديث ورلره دمناکيرونه ذکر کړي اوګوره ميزان الاعتدال جـ١ صـ٢٢٨ - حافظ ابن حجر وايي : فيه اضطراب (تهذيب التهذيب جـ١ صـ٢٨٢ . والله اعلم.

دوهم په مشهوره دعا کې د من لفظ هم ثابت نه دی لکه چې دابن السُني **٤٢٢** او نوروکتابونوکي صرف وَجَعَلَنا مُسْلِمِينَ ثابت دی خو حديث نه دی. - والله اعلم اوګوره عجالة الراغب جـ٢ صـ **٥٣٠**.

**١٢٣ - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي اَطْعَمَنِي هَذَا وَرَزَقَنِيهِ مِنْ غَيْرِ حَوْلٍ مِنِّي وَلَا قُوَّةٍ.**

(حسن _ اخرجه الترمذي ٣٤٨ وابوداؤد ٤٠٢٣ وابن ماجه ٣٢٨٥ واحمد جـ٣ صـ٤٣٩ والحاكم جـ١ صـ٥٠٧ — انظر الارواء ١٩٨٩).

**ترجمه**: ټول صفتونه دکمال هغه الله لره دی چې ماته يې داطعام راکړو او رزق يې ماته راکړو دطاقت زمانه).

**وضاحت**: معاذبن انس ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمائلي دی چاچه طعام وخوړلو او دغه دعائي ولوستله نو مخکني ګناهونه به يې معاف شي). معلومه شوه چې داډير دثواب اواجر دعاده.

## داوبو څښلو دعا

### ۱۲۴ - اَلْحَمْدُلله.

(مسلم ٢٧٣٤ والترمذي ١٨١٧ واحمد في المسند جـ٣ صـ١٠٠).

**وضاحت**: انس ﷺ وایي رسول الله ﷺ فرمايي يقيناً الله تعالى دهغه بنده نه ډير راضي کيږي چې طعام وخوري او په هغي الحمدلله ووايي او يا اوبه وڅکي په هغي الحمدلله ووايي.

### ۱۲۵ - اَلْحَمْدُ لِلهِ الَّذِي اَطْعَمَ وَسَقَى وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مَخْرَجاً

(صحيح: اخرجه ابوداؤد ٣٨٥١ — وتقدم رقم ١٢١) ترجمه يې مخکي شويده.

## دشيدو (پي) دڅښلو دعا

### ۱۲۶ - اَللهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيهِ وَزِدْنَامِنْهُ.

(اخرجه الترمذي ٣٤٥٥ والبغوي في شرح السنة ٣٠٥٥ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٢٦٤ وابوداؤد ٣٧٣٠ والنسائي ٢٦٥ — والطيالسي ٢٧٢٣ وابن حجر في نتائج الافكار جـ٢ صـ٢٨٥ والحميدي في مسنده جـ١ صـ٢٢٥ واحمد جـ١ صـ٢٢٠) وحسنه الألباني (رح) وغيره راجع صحيح الترمذي وابي داؤد).

**ترجمه**: يا الله برکت واچوي مونږ ته په دی شيدو کې او د دې نه نور زيات راکړي.

## دروژه ماتي دعا

### ۱۲۷ - ذَهَبَ الظَمَأُ وَابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ وَثَبَتَ الْاَجْرُ اِنْ شَاءَاللهُ.

(حسن — اخرجه ابوداؤد ٢٣٥٧ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٢٩٩ وابن السُني ٤٧٨ والدارقطني ٢٤٠ والحاكم جـ١ صـ٤٢٢ — انظر الفتوحات الربانية جـ٤ صـ٣٣٩ والارواء ٩٢٠).

**ترجمه**: تنده ختمه شوه اورګونه لامده شول او اجر ثابت شو ان شاء الله.

**وضاحت**: عبد الله بن عمر ﷺ فرمايي: رسول الله ﷺ چې به کله افطار کولو نو دغه دعابه يې ويله.

**تنبيه**: صاحب دکتاب مستند او مسنون اذکار صـ۱۰۱ کې د روژه ماتي يوه دعا ذکر کړي الحمد لله الذي أعانني فصمتُ ورزقني فـأفطرتُ. (شعب الايمان ۳۹۰۲ والدعوات الكبير ۴۵۰ والبغوي في شرح السنة ۱۷۴۱- وغيرهم-) خو سندئي نهايت ضعيف دی يو خومرسل دی بل سره دارسال نه معاذ بن زهرة مجهول دی. امام ترمذی رحمه الله په تهذيب الكمال جـ۲۸ صـ۱۲۲ کې ليکي: معاذ بن زهرة روى عن النبي ﷺ مرسلا القول عند الافطار-) لهذا حديث ضعيف دی راجع عُجالة الراغب جـ۲ صـ۵۴۲).

**فائده**: يوه بله مشهوره دعا چې ډيره مشهوره ده دروژه ماتي ، اَللّٰهُمّ لک صُمْتُ وعلى رزقک افطرتُ (ابوداؤد ۲۳۵۸) خو داحديث هم مرسل دی امام منذري (رح) وايي: هذا مرسل يعني دا مرسل حديث دی لهذا صحيح دعا هماغه ده چې مونږ ذکر کړي. والله اعلم.

## دنوې ميوې دخوراک دعا

۱۲۸ - اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي ثِمَارِنَا وَبَارِكْ لَنَا فِي مَدِيْنَتِنَا وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَمُدِّنَا.

(مسلم ۱۳۷۳ وصحيح الترمذي ۲۷٤۸ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۳۰۲ وابن السُني ۲۷۹ وغيرهم).

**ترجمه**: یا الله زمونږ په میوو کې برکت واچوي اوزمونږ په ښارکي برکت واچوه او زمونږ په من او چارک کي برکت واچوه.

**۱۲۹ -اللهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُم وَاغْفِرلَهُمْ وَارْحَمْهُمْ.**

(مسلم ۲۰۴۲ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۲۹۱ وابن السُني ٤۷٦ -)

**ترجمه**: یا الله برکت واچوې دوی دپاره په هغه څه کې چې تا دوی ته ورکړي (رزق وغیره) او دوی ته بښنه وکړي او په دوی رحم وکړي.

**۱۳۰ - اَفْطَرَعِنْدَكُمْ الصَّائِمُوْنَ وَاَكَلَ طَعَامَكُمْ الاَبْرَارُ وَصَلَّتْ عَلَيْكُمُ الْمَلائِكَةُ.**

(صحیح: ابوداؤد ۳۸۵٤ احمد جـ۳ صـ۱۳۸ والبیهقي في السنن جـ۷ صـ۲۸۷ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۲۹٦ وابن السُني ٤۸۲ والدارمي ۱۷۷۹ واسناده صحیح – انظر الفتوحات الربانية جـ٤ صـ۳٤۷).

**ترجمه**: ډوډي خوري تاسو کره روژه دار یعني روژه ماتي دی وکړي اوستاسو طعام دی نیک خلک وخوري او بښنه دی وغواړي تاسو لره ملائکي.

**وضاحت**: عبد الله بن بُسر ﷺ وایې رسول الله ﷺ زما پلار ته راغي او مونږ رسول الله ﷺ ته طعام او څه حلوا راوړه نو هغه وخوړه بیا زما پلار ورته وویل ما ته دعا وکړه نو رسول الله ﷺ ورته وویل – اَللّهُمّ بارک لهم فیما رزقتهم الخ

انس ﷺ وایې رسول الله ﷺ سعدبن عُبادة ﷺ ته راغي نو هغه ورته ډوډي او غوړي راوړه نو هغه وخوړل بیا رسول الله ﷺ ورته وویل : افطرعندکم الصائمون الخ

**لطیفه**: صاحب دمستند اذکارو په خپل کتاب الفوائد جـ۱ صـ۲۰۹ کې وایې: افسد شيئ لقلب الانسان هو الشهوة وكثرة الضيفان (ابومحمد امين الله)اهـ. یعني دانسان زړه چې ډیر فاسدوي هغه شهوت دی او ډیر میلمانه). زه وایم آیا ابراهیم ﷺ میلمه دوست نه ؤ محمد رسول الله ﷺ چې وایې من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليكرم ضيفه – (البخاري ۲۰۱۸ ومسلم ۴۷) تر دی چې دمیلمه حق واجب دی خو صاحب د الفوائد وایې چې میلمانه زړه فاسدوي افسوس یو طرفته دمحمد رسول الله ﷺ دسنتو تابعداري دعوه او بل طرفته دهغه مخالفت – آیا د رسول الله ﷺ میلمانه ډیر ؤ او که ستاسو چې هغه امر په ضیافت کوي او ته وایې چې دا زړه فاسدوي شاید چې مقلدین یې بل څه تاویل وکړي.

۱۳۱ – **اَللهُمَّ اَطْعِمْ مَنْ اَطْعَمَنِي وَاسْقِ مَنْ سَقَانِي.**

(مسلم ۲۰۵۵ واحمد جـ۶ صـ۲ والترمذي ۲۷۱۹ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۳۲۳)

**ترجمه**: یا الله خوراک او طعام ورکړې هغه چاته چې ماته یې طعام راکړه او څکاک ورکړې هغه چاته چې ماته یې څکاک راکړو.

**وضاحت**: مقدادبن الاسود ﷺ په یو اوږد حدیث کې وایې چې هغه (محمد ﷺ) سر مبارک اسمان ته اوچت کړو او دغه دعائي وکړه). داهم د میلمه ده دعا ده دکور والا دطرفنه – خوچه کوردی معلوم وې هسې نه چې میلمانه راشي او ته ورته وایې ورځه دمدرسي لنګر شته او یا شیخ صاحب اذکار کوي او یا ویده دی استراحت کوي.

## دبازار دننوتلو دعا

۱۳۲ - لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ ، لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ حَيٌ لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُوَهُوَعَلَى كُلِّ شَيءٍ قَدِير.

(صحيح لغيره — اخرجه الترمذي ٣٤٢٩ وابن ماجه ٢٢٣٥ واحمد جـ١ صـ٤٧ والبزار جـ١ صـ٢٣٨ والطيالسي ١٢٥٠ وللحديث شواهد كثيرة راجع عُجالة الراغب جـ١ صـ٢٣٨ رقم ١٨٣).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالى نه هغه يو ذات دى شريک نه لري خاص هغه لره بادشاهي ده او خاص هغه لره صفتونه دکمال دی او هغه ژوندی دی هغه نه مری او په لاس دهغه کې خير دی او هغه په هر څه قُدرت والا دی.

**وضاحت**: ابن عمر ﵁ دخپل پلار نه روايت کوي رسول الله ﷺ فرمايې څوک چې يو ښارته د ښارونونه داخل شو او دغه دعائي وويله نو الله تعالى به ورته لس (۱۰) لاکهـ نيکي ورکړي او لس (۱۰) لاکهـ ګناهونه به يې معاف کړي او په جنت کې به ورلره يو کور جوړکړي). معلومه شوه چې دا ډيره بهترينه دعا ده خو عاملين يې غافلين دی.

## دتکليف په وخت دعا

۱۳۳ - حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَکِيْلُ.

(صحيح البخاري جـ٨ صـ١٧٢ في تفسير سورة آل عمران باب قوله ﴿ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ فَٱخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَـٰنًا وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ﴾ الآية (١٧٣). من حديث ابن عباس ﵄.

**ترجمه**: کافي دی مونږ لره الله تعالی او هغه ښه ذمه وار دی.

**وضاحت**: عبد الله بن عباس ﷺ وايي داکلمه ابراهيم ﷺ په هغه وخت کې وويله چې کله په اور کې وغورزول شو او محمد رسول الله ﷺ په هغه وخت کې وويله چې کله ده ته وويل شوچه ﴿إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدۡ جَمَعُواْ لَكُمۡ يعنې خلک تاسو دپاره جمع شويدي.

## دغمونو او خفګان دعاګانې

**۱۳۴ - لَا إله إلا اللهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ ، لَا إله إلا الله رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمُ ، لَا إله إلا الله رَبُّ السّموات وَرَبُّ الَارضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْم.**

(صحيح البخاري ٦٣٤٥ ومسلم ٢٧٣٠ والترمذي ٣٤٣٥ وابن ماجة ٣٨٣٨ واحمد ج١ ص ٢٢٨ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٦٥٢ والبخاري في الادب المفرد ٧٠٠).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه چې لوي دی او صبرناک دی ،نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه چې هغه مالک دی دلوي عرش او نشته حقدار دبنده ګۍ سوا دالله تعالی نه چې مالک دی او رب دی داسمانونو اوځمکو او رب دی دعزت مند عرش.

**وضاحت**: عبد الله بن عباس ﷺ فرمايي: رسول الله ﷺ به دغم په وخت کې دغه دعا لوستله.

**۱۳۵ - اَللهُمَّ رَحْمَتَکَ اَرْجُو فَلا تَكِلْنِي اِلَی نَفْسِيْ طَرْفَةَ عَيْنٍ وَاَصْلِحْ لِيْ شـاْنِي كُلَّهُ لَا اِلهَ اَلَا اَنْتَ.**

(اسناد ه حسن وصحيح بطرقه — اخرجه ابن حبان ٢٣٧٠ — موارد — والنسائي في عمل اليوم والليلة ٥٦١ وابن السُني ٣٤٣ واحمد في المسند جـ٥ صـ٤٢ وصححه الألباني (رح) في صحيح الجامع ٣٣٨٢ وصحيح الادب ٥٣٩ واما تضعيف بعضهم للحديث لِاَن فيه جعفربن سيحون التميمي لا يضر لِاَن جعفراً يعتبر به قال ابوحاتم صالح وقال الدارقطني يعتبر به — التحرير على التقريب جـ١ صـ٢٢١ رقم ٩٦١).

**ترجمه**: یاالله تعالی ستا درحمت اُمید کوم پس ما خپل نفس ته مه سپاره په اندازه دسترګی درپ او زما دټولو کارونو اصلاح وکړی – نشته حقدار دبنده ګۍ سواستانه.

**وضاحت**: عبد الرحمن بن ابي بكرة دخپل پلار نه روايت كوي وايې: رسول الله ﷺ فرمائلي دی دغمزده کلمات دغه دی – کوم چې ذکر شول.

**١٣٢ – اَللّٰهُ اللّٰهُ رَبِّيْ لا اُشْرِكُ بِهِ شَيْـئاً.**

(حسن — اخرجه ابوداؤد ١٥٢٥ ابن ماجة ٣٨٨٢ واحمد جـ٦ صـ٣٦٩ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٦٤٧ والطبراني في الدعاء ١٠٢٧ — وله شاهد عند ابن حبان ٢٣٦٩ — موارد — فالحديث حسن — انظر جامع الاصول جـ٤ صـ٢٩٧ وحسنه الشيخ عبدالقادر الارناووط في الجامع وكذا حسنه الألباني (رح) في صحيح الجامع ٢٦٢٣).

**ترجمه**: الله – الله زما رب دی زه دهغه سره هیڅ برخي والا نه شریک کوم.

**وضاحت**: مذکوره دعا دغم په وخت یو ځل ویل په کار دی دري ځله چیرته نه ده راغلي لهذا په حدیث کې چې څنګه وی په هغې عمل په کار دی.

**١٣٧ – لَا إله إلا الله سُبحَانَكَ انِّيْ كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِيْنَ.**

(صحيح — رواه الترمذي ٣٥٠٥ والحاكم جـ١ صـ٥٠٥ وصححه وواثقه الذهبي وهو كما قالا ورواه احمد جـ١ صـ١٧٠ وهو في صحيح الترمذي).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګۍ سِوا ستانه - پاکي ده تالره يقيناً زه دظالمانونه يم.

**وضاحت**: سعد ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمايي - يونس ﷺ چې کومه دعا دماهي په ګيډه کې کړي وه هغه دغه دعاده - دا دعا يو مصيبت زده مسلمان نه وايي په يو مصيبت کې مګر الله تعالى به ورلره ضرور مور دعا قبلوي.

**تنبيه**: صاحب دمستند اذکارو صـ۱۰۴ کې دپريشانۍ يو دعا ذکر کړي : يا حي ياقيوم برحمتک استغيث - (اخرجه الترمذي **۳۵۲۴** - والحاکم **۱۸۷۵** وصححه لکن رده الذهبي بقوله: عبد الرحمن لم يسمع من ابيه وعبد الرحمن ومن بعده ليسوا بحجة (التلخيص بذيل المستدرک - وابن السُني **۳۳۸**) خو حديث نهايت ضعيف دی، دترمذي په روايت کې يزيد بن آبان الرقاشي متروک الحديث دی او شاهد چې حاکم **۱۸۷۵** او بيهقي په الدعوات الکبير جـ۱ صـ۱۲۷ کې روايت کړي هغه هم ضعيف دی اول سندکي عبدالرحمن بن اسحاق الواسطي دی - امام ذهبي (رح) وايي: ضعفوه - يعني ټولو ضعيف کړي حافظ ابن حجر (رح) وايي ضعيف - (التقريب جـ۱ صـ۴۷۲) دوهم په کې النضر بن اسماعيل البجلي : دی هم ليس بالقوي دی لکه چې ابن حجر (رح) وايي - حافظ ذهبي دحاکم خبره په تصحيح سره رد کړه وايي: قلتُ عبد الرحمن لم يسمع من ابيه - او عبد الرحمن او دده نه روسته ټول قابل حجت نه دی . اوګوره تلخيص المستدرک **۱۸۷۵**) ددې وجې نه حافظ ابن حجر داحديث ضعيف کړي او

ګوره الفتوحات الربانیة جـ۴ صـ۲) لهذا حدیث ضعیف دی دیته حسن ویل خطاء دی او په مستند اذکارکي ذکرکول نه ؤ په کار.

**تنبیه**: صاحب دمستند اذکارو صـ۱۰۲ یو بله دعا اَللّٰهُمَّ اني عبدک وابن عبدک وابن أمتک الخ او حواله یې په حاکم جـ۱ صـ ۵۱۰ رقم ۱۸۷۷ او ابن حبان ورکړي او مسند احمد ۳۷۱۷ کې هم شته خو حدیث ضعیف دی امام الحاکم چې کله داحدیث صحیح کوي نو امام ذهبي وایې: وابوسلمة لایدري من هو ولا روایة له في کتب الستة – انظر التلخیص مع المستدرک) اوپه المغني ۷۵۱۰ کې وایې ابوسلمة الجهني شیخ لفضل بن مرزوق لا یدري من هو – یعني ابوسلمه الجهني نه پیژندل کیږي چې داڅوک دی او دمسند احمد او مستدرک او ابن حبان په ټولو سندونو کې همدغه ابوسلمه الجهني دی چې مجهول دی ،ددې وجې نه تصحیح دحاکم امام ذهبي رد کړي نو حدیث ضعیف دی چې په مستند اذکارو کې ذکر کول غیر مستند دی.

## ددښمن نه د ویرې دعاګانې

۱۳۸ – اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَجْعَلُکَ فِي نُحُورِهِمْ وَنَعُوذُبِکَ مِنْ شُرُورِهِم.

(حدیث صحیح اخرجه ابوداؤد ۱۵۳۷ والنسائي في الکبری – قال الحافظ بعدتخریجه حدیث حسن غریب ورجاله الصحیح – الفتوحات الربانیة جـ٤ صـ١٦) وصححه النووي في الاذکار ٣١٩ وصححه الحاکم ٢٦٢٩ ووافقه الذهبي (رح)).

**ترجمه**: یا الله مونږ تا ددوي په سینوکي ګرځواو پناه غواړو پتا دشرونو ددوي نه.

**وضاحت**: ابوبردة بن عبدالله بن قيس - دخپل پلار نه حديث بيانوي چې رسول الله ﷺ به کله ديوقوم نه ويريدلو نو دا دعا به يې ويله.

**١٣٩ - اَللهُمَّ اَنْتَ عَضُدِي وَنَصِيْرِي بِکَ اَحُولُ وَبِکَ اَصُولُ وَبِکَ اُقَاتِلُ.**

(صحيح — اخرجه ابو داؤد ٢٦٣٢ والترمذي ٣٥٧٨ والنسائي واسناده صحيح وصححه النووي في الاذکار ٥٠٤).

**ترجمه**: يا الله تعالى ته زما مټ يې او زما امدادي يې په تا خپل طاقت نيسم او ستا په مدد په دښمن حمله کوم او ستا په مددسره قتال کوم.

**وضاحت**: انس رضی الله عنه فرمايي رسول الله ﷺ چې به کله غزاکوله نو دغه دعا به يې ويله.

## که يو نوې نعمت په لاس درشي

**١٤٠ - اَلْحُمْدُلِلّه الذِيْ بِنِعْمَته تَتِمُّ الصَّالِحَاتُ.**

(صحيح بالشواهد اخرجه — ابن ماجه ٣٨٠٣ والطبراني في الدعا ١٥٩٥ — ١٧٦٩ — والبيهقي في الدعوات جـ٢ صـ٣٢٥ وشعب الايمان ٤٣٧٥ والادب ١٠٣٢ وابن عساکر في تاريخ دمشق جـ١٥ صـ٢٥٥ والطبراني في الاوسط ٦٦٦٣ راجع الصحيحة جـ١ صـ٣٥٠ رقم ٢٦٥٠تخريج الکلم الطيب ١١٣ — وراجع عُجالة الراغب جـ١ صـ٤٣٠ ) وابن السُني ٣٧٩).

**ترجمه**: ټول صفتونه دکمال هغه ذات لره دی چې دهغه په نعمت سره پوره کيږي ښه حالات)

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي رسول الله ﷺ چې به کله يو ښه شي وليدو او هغه به يې خوښ شو نو دغه دعا به يې ويله ). او چې کله به

يې بدشي وليدلو نو ويل به يې الحمد لله على كل حال – يعني الله تعالى لره شكر دى په هر حال كې.

**تنبيه**: صاحب دمستند اذكارو صـ١١٠ كې دنعمت دعا ذكر كړې : ماشاء الله لا قوة الا بالله الخ بيا وايې سند يې لږ ضعيف دى او تائيدئي دقران نه كيدي شي الخ اول خو حديث ضعيف دى ابن السُني **٣٥٨** – طبراني په الصغير جـ١ صـ٢١٢ امام بيهقي في الدعوات الكبير جـ٢ صـ٢٨٣ او شعب الايمان **٤٣٢٩** كې روايت كړي – لكن سند كې عبد الملك بن زُراره دى ضعيف دى (مجمع الزوائد جـ١٠ صـ١٠٤ - بل پكښې عيسى بن عون دى ، الشيخ الألباني وايې قال الازدى : عيسى بن عون عن عبد الملك لا يصح حديثهما عن انس – راجع عُجالة الراغب جـ١ صـ٤١٢) لهذا سندئي ډير ضعيف دى په مستند اذكارو كې ذكر كول په كارنه ؤ.

١٤١ – رسول الله ﷺ ته چې به كله نوي نعمت يا نوي زيري يا ددښمن هلاكت خبر ورسيدو نو سجدۀ شكر به يې وكړه.

**وضاحت**: انس رضي الله عنه وايې رسول الله ﷺ باندې چې به كله ديو حاجت دپوره كيدو زيري وكړې شونو په سجده په پرې وتلو – اوګوره ابن ماجه **١٣٩٢** وغيره.

## دمصائبو وخت كې دعا او ذكرونه

**١٤٢ – لَا إله إلا الله الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى تَبَارَكَ اللهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ وَالْحَمْدُ لله رِبِّ الْعَالَمِيْن.**

(صحيح اخرجه الحاكم جـ١ صـ٥٠٨ رقم ١٨٧٤ وصححه ووافقه د الذهبي وابن حبان جـ٣ صـ١٤٧).

**ترجمه**: نشته حقدار دبنده ګی مګر یو الله تعالی دی چې صبرناک دی عزتمند دی پاکي ده هغه لره او اوچت دی هغه ، برکت ورکونکي دی الله تعالی چې خاوند دعرش لوي دی او ټول صفتونه دکمال خاص هغه لره دی چې پالونکي دټول مخلوق دی.

**وضاحت**: علي ﷺ وايې درسول الله ﷺ سره زما ملاقات وشو او په ما ډېر سخت غم ؤ نو ماته یې دغه کلمات وښودل او بل روایت کې راځي چې ماته رسول الله ﷺ ددغه کلماتو تعلیم راکړو چې کله ماته څه مصیبت رسي نو زه به دغه کلمات وایم. عبدالله بن جعفر ﷺ به دغه کلمات ځنکدن والا ته تلقین کول او هغه به یې پرې دموه.

**۱۴۳ - اناالله وَاناالَيْهِ رَاجِعُونَ - اَللهُمَّ أْجُرْنِيْ فِي مُصِيْبَتِي وَأَخْلِفْ لِي خَيْراً مِنْهَا.**

(مسلم ۹۱۸ ومشكاة ١٦١٨).

**وضاحت**: أُم سلمة رضي الله عنها فرمايې: رسول الله ﷺ ويلي دی نه دی یو مسلمان چې هغه ته څه مصیبت ورسيږي او وایې هغه څه چې الله تعالی امر کړي يعني انا لله وانا اليه راجعون ،اَللّهُمّ اجرني في مصيبتي الخ ، مګر الله تعالی به ده ته اجر او ثواب ورکړي په دغه مصیبت کې او غوره شي به ورلره په عوض کې ورکړي – هر کله چې ابوسلمه (خاوند دام سلمه) وفات شو نو ما وویل چې په مسلمانانو کې به دابو سلمه نه بل غوره چیرته وي ځکه اول مهاجر رسول الله ﷺ ته دې ؤ بیامي دغه دعا وویله نو الله تعالی ما ته رسول الله ﷺ په زوجیت سره راکړو.

## دمريضانو دپوښتنې وخت کې دعاګانې

**۱۴۴ - لَا بَأْسَ طَهُورٌ انْ شَاءَ اللّٰهُ.**

(صحيح البخاري ۵۶۶۳ والمشكاةَ ۱۵۳۰)

**ترجمه**: باک نه کوي مريضتيا ستا دګناهونو دپاره پاکونکي ده.

**وضاحت**: ابن عباس رضي الله عنه فرمايي رسول الله ﷺ ديو بانده چې مريض پوښتنې کوله او چې کله به رسول الله ﷺ مريض ته ورغي نو دغه دعا به يې ورته کوله، نو دغه بانده چې څه يې هم دغه دعا وکړه نو هغه بانده چې وويل داسې نه ده بلکه سخته تبه مي ده چې جوش وهي او په بوډا دغه تبه راغلي ده چې دقبرونو زيارت پرې کوي - نو رسول الله ﷺ ورته وويل همداسې ده ). يعني چې ته اې اعرابي دالله تعالى درحمت نه نا أُميدي کوې نو بيا داپاکونکي دګناه نه ده ځکه ته صبر نه کوې.

**۱۴۵ - اَذْهِبِ الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ اَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ الا شِفَاءُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَماً.**

(صحيح البخاري ۵۶۷۵ ومسلم ۲۱۹۱ والمشكاة ۱۵۲۸)

**ترجمه**: اې دخلکو ربه زما مريضتيا ختمه کړې او شفاء ورکړې دې ته شفا ورکونکې يې ته نشته شفاء مګر ستا شفاء ده داسې شفا ورکړې چې مريضتيا پرې نه ږدي.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي : رسول الله ﷺ ته چې به کله يو انسان دمريضتيا شکايت وکړو په ښي لاس به يې مريض مسح کړو يعني لاس به يې پرې راښکلو او بيا به يې دغه دعا پرې دم کړه.

**۱۴۲ –اَسْئَالُ اللهَ الْعَظِيْمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْم اَنْ يَشْفِيَكَ.**

(اسناده صحيح – اخرجه ابو داؤد ٣١٠٦ والترمذي ٢٠٨٠ والحاكم ج٤ ص٤١٦ وصححه ووافقه الذهبي(رح) – والمشكاة ١٥٥٣).

**ترجمه**: دلوئ الله تعالی نه سوال کوم چې مالک او خاوند دعرش لوی دی چې تاته شفاء درکړی.

**وضاحت**: عبد الله بن عباس ﷺ وايي رسول الله ﷺ فرمايي: نه دی يو مسلمان چې دبل مسلمان دمريضتيا پوښتنه وکړي او دغه دعا اوه (۷) ځله ووايي مګر شفاء به ورکړي شي مګر که آجل يې حاضر ؤ.

**۱۴۷ – سورت الفلق ، سورت الناس.**

( صحيح البخاري ٥٧٥١ ومسلم ٢١٩٢).

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي رسول الله ﷺ چې به کله مريض شو نو ځان به يې په معوذتين دمولو او لاس به يې په خپل بدن مبارک راښکلواو کله چې رسول الله ﷺ دوفات په مرض مريض شو نو مابه معوذتين باندې هغه دمولو.

**۱۴۸ – بِسْمِ اللهِ أعوذبِعِزَّةِ اللهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا اَجِدُ وَاُحَاذِرُ.**

(مسلم ٢٢٠٢ والمشكاة ١٥٣٣).

**ترجمه**: دالله تعالی په نوم پناه غواړم په عزت او قُدرت دالله تعالی باندې دشر دتکليف هغه چې زه يې مومم او ترينه ويريږم.

**وضاحت**: عثمان بن اَبي العاص ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ ته ده شکايت دخپل مرض وکړو چې بدن يې درد کولو نو رسول الله ﷺ ورته وويل چې په

هغه ځای باندې دی لاس کیږ ده کوم ځای چې درد کوي او دري ځله بسم الله وو ایه او روسته (۷) ځله أعوذ بعزة الله وقدرته الخ وو ایې، عثمان بن ابي العاص وایې داکار ما وکړو نو الله تعالی مانه هغه درد ختم کړو.

**۱۴۹ - بِسْمِ اللهِ اَرْقِيْکَ مِنْ کُلِّ شيءٍ يُؤْذِيْکَ مِنْ شَرِّ کُلِّ نَفْسٍ اَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ ، اللهُ يَشْفِيْکَ ، بِسْمِ اللهِ اَرْقِيْکَ.**

(مسلم ٢١٨٦ والمشكاة ١٥٣٤).

**ترجمه**: دالله تعالی په نوم دی دموم دهر هغه شي نه چې تاته تکليف درکوي دشر دهر نفس یا دسترګو دحسدګر دلږولونه، الله تعالی دی شفاء درکړي په نوم دالله تعالی دی دموم.

**وضاحت**: ابو سعيد الخُدري ﷺ وایې جبرئیل ﷺ رسول الله ﷺ ته راغي نو وئي ویل ای محمد ﷺ مریض یې؟ نو هغه وویل آو مریض یم ، نو جبرئیل ﷺ پري دغه دم واچولو ، معلومه شوه چې دا بهترینه دعا او دم دی چې جبرئیل ﷺ ویلي دی.

**۱۵۰ - اَللهُمَّ اشْفِ عَبْدَکَ يَنْکَأُ لَکَ عَدُوّاً اَوْ يَمْشِيْ لَکَ اِلَی صَلَاة.**

(اسناده حسن اخرجه ابوداؤد ٣١٠٧ وابن ابي الدنيا في المرض والكفارات ١٧٤ – والطبراني في الكبير ج١٣ ص١٠٧ وابن حبان في صحيحه ج٧ ص٢٣٩ والحاكم ج١ ص٣٤٤ – ٥٤٩ – واحمد ج٢ ص١٧٢ – وصححه الحاكم ووافقه الذهبي (رح) وحسنه الحافظ ابن حجر (رح) كمافي الفتوحات الربانية ج٤ ص٦٣).

**ترجمه**: یاالله تعالی ته خپل بنده ته شفاء ورکړه چې ستا کوم دښمن ته به تکلیف ورکړي یابه ستا دپاره مونځ ته لاړشي.

**وضاحت**:عبد الله بن عمرو ﷺ وايي رسول الله ﷺ چې به کله دمريض پوښتنه کوله او ورته به راغي نو دغه دعا به يې ورته کوله. ددينه معلومه شوه چې دژوندون غرض او غايه دوه خبري دي چې دالله (ج) اطاعت کول او دالله تعالى ددښمنانو سره دښمني او قتال کول دي. بغير ددينه ژوند ګی عبث ده ، الله تعالى ته په کار نه ده.

## که څوک مريض شي نو ځانته به کومه دعا ډيره کوي؟

## ١٥١ - اَللهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَ فِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النارِ.

(مسلم ٢٦٨٨ والترمذي ٣٤٨٧)

**ترجمه**: يا الله تعالى مونږ ته په دنيا کې ښائسته حالت او ژوندراکړي او په آخرت کې ښائسته حالت راکړه او د اُور دعذاب نه مو وساتي).

**وضاحت**: انس ﷺ وايي رسول الله ﷺ ديو سړي دمسلمانانو نه چې مريض ؤ پوښتنه کوله چې دغه صحابي ډير سخت مريض ؤ رسول الله ﷺ ورته وويل آيا تا دعا کړي يا دی دالله تعالى نه سوال کړي هغه وويل آو. ما به ويل ، يا الله تعالى که په آخرت کې ماته عذاب راکوي پدی سره نو په دنيا کې اوس ماته راکړه رسول الله ﷺ وويل سبحان الله ته يې طاقت نه لري تا ولې دا دعا نه ويله ، اَللّهُمّ آتنا في الدنيا حسنة الخ)

## دانه يا زخم او چيچلی شوی شخص به څنګه دموي؟

## ١٥٢ - بِسْمِ اللهِ تُرْبَةُ اَرْضِنَا بِرِيْقَةِ بَعْضِنَا يُشْفَى بِهِ سَقِيْمُنَا بِاذْنِ رَبِّنَا.

(صحيح البخاري ٥٧٤٣ ومسلم ٢١٩٤ والمشكاة ١٥٢٩).

**ترجمه**: دالله تعالى دنوم په بركت درباندې دم اچوم دا زمونږ دځمكې خاوره ده چې زمونږ نه دبعضې كسانو دلاړو سره كډه (خلط) شويده شفابه وركولې شي په دى سره زمونږ مريض ته زمونږ درب په حكم او امر سره).

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها وايې رسول الله ﷺ ته چې به كله يو انسان ديو مرض يا زخم يا دانې شكايت وكړو نو رسول الله ﷺ به ګوته په ځمكه كيښودله او بيا به يې دغه خړه ګوته راپورته كړه او دغه دعا به يې ويله).امام قُرطبي (رح) وايې داحديث دليل دى چې دهرقسم درد نه دم اچول جائز دى او دغه ګوته ايښودل په ځمكه سنت دى - نو امام قُرطبي (رح) وايې چا ويلي دى چې دځمكې نه مراد مدينه طيبه ده ځكه هغې كې ډير بركت دى رسول الله ﷺ به دغه ګوته د مريض په دردمند ځاى كيښودله او دغه كلمات به يې ويل).

## دتبې دپاره دعا

١٥٣ - اكْشف الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ الهَ النَّاسِ.

(صحيح اخرجه ابن ماجه ٣٤٧٣ – وصحيح الجامع ٣١٨٦)

**ترجمه**: اى الله دخلكو ربه او دخلكو حقدار دبنده ګۍ دا تكليف او مرض ددې بنده نه لرې كړه.

**وضاحت**: رافع بن خديج رضي الله عنه وايې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دى ويل يې چې تــبه دجهنم براس دى پس په أُوبوئې يخه كړئ رسول الله ﷺ دعمار رضي الله عنه دځوې پوښتنې ته راغې نو وئې ويل (اكشف الباس الخ) معلومه شوه

چې دا دعا دتــبي پوري خاص ده دانه چې نورو ځایونو کې ځکه دلته تعین دمرض شویدي نو هغه ځوک چې وایې چې نورو مرضونو دپاره داهم ویل کیدي شي خطاء ده او یا دی حدیث پیش کړي.

## دیهودو او نصارئ دپوښتنې په وخت کې دعاګول

**۱۵۴ – اَشْهَدُ اَنْ لَا إله إلا الله وَاَشْهَدُاَنَّ مُحَمّداً رَّسُولُ اللهُ.**

(صحيح البخاري ٣٠٩٥ والمشكاة ١٥٧٤)

**وضاحت**: حدیث کې دا الفاظ نه دي راغلي خو کافر ته به دعوت داسلام او تلقین ددغه کلمي چې شخص پري مسلمان کیږي ورکوي – حدیث کې راځي :انس ﷺ فرمایې یو یهودي غلام ؤ (ماشوم) ؤ چې درسول الله ﷺ خدمت به یې کولو هغه مریض شو نو رسول الله ﷺ دهغي پوښتنې ته ورغي او سرته ورته کیناسته او ورته ئې وویل چې اسلام راوړه نو هغه خپل پلارته وکتل نو پلار ورته وویل چې دابوالقاسم (محمد ﷺ) خبره ومنه نو هغه اسلام راوړو نو رسول الله ﷺ یې بیا دکورنه ووتلو او وئي ویل : الحمد لله الذي انقذه من النار -) یعني ټول ثنا صفت یو الله تعالی لره دی چې دا شخص یې داور نه خلاص کړو.

## دلړم او مارچیچلي شوي دعا

**۱۵۵ – سورة فاتحه - الحمد لله رب العالمين** تر آخره پوري.

(صحيح البخاري ٥٧٤٩ ومسلم ٢٢٠١).

**وضاحت**: ابوسعید الخُدري ﷺ وایې د رسول الله ﷺ بعضي صحابه کرام په سفر ووتل نو دیو کلي میلمانه شول نو دوی ترینه دمیلمستیا غوښتنه

وکړه نو دغه کلي والا انکار وکړو دميلمستيا نه نو ددغه کلي مشر مار يا لړم وچيچلو نو هغوي هر قسم علاج وکړو لکن کومه فائده يې ورنه کړه نو بعضو وويل چې دغه ميلمانه دی کيدی شي د دوی سره څه علاج وې نو هغوي دغه مريض دوی ته راوستلو او بعضو صحابه کرامو ورته وويل چې تر هغې مونږ پدې مريض دم نه اچوو تر څوچه مونږته څه مال رانکړې ځکه تاسو مونږ ته ميلمستيا هم رانه کړه نو هغوي څه ګډې ومنلې نو دغه صحابي بيا په الحمدلله رب العالمين الخ باندې هغه دم کړو نو داسې ښه شو، ګويا چې دسره پرې درد نه دی راغلي نو هغوي ترينه دغه ګډې واخستلې نو صحابه کرامو خپلو کې وويل چې دابه تقسيم کړو نو هغه دم ګري صحابي وويل تر هغې يې مه تقسيموي چې رسول الله ﷺ ته لاړنه شو نو بيا رسول الله ﷺ ته راغلل دغه قصه ئې ورته وکړه نو رسول الله ﷺ ورته وويل چې تاسو په سنت طريقه عمل کړي دا روا دم دی او مالره پکې هم حصه راکړئ نو رسول الله ﷺ وخندل په بل روايت کې راځي چې دوی ته يې ۳۰ ګډې ورکړې

**فائده**: داحديث دليل دی چې په دم شرعي باندې پيسې اخستې شي ځکه دا طبابت دی او که قرآن چې دثواب په نيت ولوستل شي لکه ختم القرآن يا درس وتدريس نو په دې جائز نه دی ځکه دحديث محمل هم رقيه ده نه بل شي.

# دليونې دمول

## ۱۵۲ – سورة فاتحه.

دري ځلي سحر دري ځلي ماښام . دري ورځي مسلسل.

(حديث حسن اخرجه ابوداؤد ٣٨٩٦ والنسائي في السنن الكبرى ٧٥٣٤ وفي عمل اليوم والليلة ١٠٣٢ واحمد جـ٥ صـ٢١١ والطيالسي ١٣٦٢ والدارقطني جـ٤ صـ٢٩٧ والبيهقي في الدعوات الكبير ٥٢٢ وابن حبان د٦١١١ – موارد وابن السُني ٦٣١ والحاكم جـ١ صـ٥٥٩ وصححه ووافقه الذهبي (رح) – قال الألباني (رح) في الصحيحة جـ٥ صـ٤٥ – رجاله ثقات – رجال الشيخين غير خارجة ابن الصلت لكنه ثقة يحتج بحديثه وحسنه الحافظ في نتائج الافكار كما في الفتوحات الربانية جـ٤ صـ٤٤ .

**وضاحت**: خارجة ابن الصلت دخپل تره نه روايت کوي چې دده تره درسول الله ﷺ خواته داسلام دراوړلو دپاره راغي نو چې کله بيرته خپل کلي ته تللو نو په يو کلي راغي چې په دغه کلي کې يو ليوني چې په زنځيرونو يې تړلي ؤ موجود ؤ نو دهغه ورثه ؤ دده ته وويل چې مونږ، ستاسو دملګرو(محمد ﷺ) نه خبرشوي يو چې هغه دخير ؤ خبر راوړيدي نو تاسو سره داسې څه شته چې د دې ليوني علاج وکړي دی وايې ما بيا دغه ليوني په سورت فاتحه دم کړو ، الله تعالى هغه في الحال ښه کړو نو دهغه کور خلکوماته سل (١٠٠) ګډې راکړي نو زه رسول الله ﷺ ته راغلم او د دې قصې نه مې خبر کړو هغه راته وويل چې دفاتحې نه خو به دې بل شي په دم کې نه يې ويلي ما وويل نه – رسول الله ﷺ وويل دا قبولي کړه څوک په باطل دم خوراک کوي او تا په حق دم خوراک کړي دی.

**فائده**: خارجه بن الصلت تره وايې دغه ليوني ما سحر او ماښام دري ورځې دم کړو لاړي به مې جمع کړي او بيابه مې په دغه ليوني توکړي نو هغه الله تعالى ښه کړو نو داهم دليل دی چې دمول هم سنت تقريري او لاړي توکول چې ورته تُفْ وايې هم سنت تقريري دی دانه چې صاحب د مستند اذکارو والا وايې چې دم دتوکل خلاف دی ښه داده چې ونه شي خو دا خبره

خطاده، اول به ده هم خلک دمول خو چې کله مشهور شو نو بیا چار پوره هندو غره – نو اوس وایې چې دتوکل خلاف دی – څنګه اول کې دتوکل خلاف نه ؤ ان تردی چې غواګاني هم دمولي خو چې اوس شهرت ته ورسیده اوس خلاف شو.

## مرګ ته نزدې مریض به څه وایي؟

**۱۵۷ – اَللهُمَّ اغْفِرلِي وَارْحَمْنِي وَاَلحِقْنِي بِالرَّفِيْقِ الَاعْلی.**

(صحیح البخاري ٤٤٤٠ – مسلم ٢٤٤٤ والترمذي ٣٤٩٠ واحمدجـ٦ صـ٨٩ والموطاء جـ١ صـ٢٣٨).

**ترجمه**: یاالله ماته بښنه وکړه په مارحم وکړه او ما دأوچتو درجو والا خلکوسره یوځای کړي.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمایي رسول الله ﷺ دمرض الموت په وخت کې ماته تکیه لرونکي ؤ او ماترینه دغه دعاء اوریدله) معلومه شوه چې کله شخص دژوند نه ناآُمید ه شي نو دغه دعابه وایي.

**۱۵۸ – لَا إله إلا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرْ – لَا الهَ الا اللهُ وَحْدَهُ – لَا إله إلا الله وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ ، لَا الهَ اَلَااللهُ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ – لَا إله إلا الله وَلَا حَوْلَ وَلَا قوةَ الا بِالله.**

(صحیح – اخرجه الترمذي ٣٤٣٠ وابن ماجه ٣٧٩٤ ). وهذا لفظه – ولفظ الترمذي ولا قوة الابي)

**وضاحت**: ابوسعید الخُدري ﷺ او ابوهریره ﷺ فرمایي رسول الله ﷺ به ویل چې دغه کلمات چاپه مرض کې وویل او په همدغه مرض کې دی بیا وفات شي نو اور به ورته ونه رسیږي.

## كه په دنيا كې دزنده ګۍ نه تنګ شي نو څه به وايې

١٥٩ - اَللهُمَّ اَحْيِنِي مَاكَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْراً لِي وَتَوَفَّنِي إذا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْراً لِي.

(مسلم ٢٦٨٠ والبخاري ٦٣٥١ – ٥٦٧١).

**ترجمه**: يا الله تعالى تهٔ ماژوندي وساتي كه زمادپاره ژوندبهتر وې او ما وفات كړي كله چې زما دپاره وفات بهتر وې.

**وضاحت**: انس ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمايې: خامخا دی يو دتاسونه دمرګ تمنى نه كوي دهغه د تكليف دوجي نه چې ورته رسيدلي دی او كه بيا هم دغه تمنى ضرور وې نو دغه دعا دی وكړي.

## په مدينه طيبه كې دمرګ غوښتلو دعا

١٦٠ - اَللهُمَّ ارْزُقْنِي الشَّهادَةَ فِي سَبِيلِکَ وَاجْعَلْ مَوْتِي فِي بَلَدِ رَسُولِکَ. (صحيح البخاري ١٨٩٠).

**ترجمه**: يا الله ماته شهادت ستا په لار كې نصيب كړي اومقرر كړه مرګ څماستا درسول الله ﷺ په ښار (مدينه كې).

**وضاحت**: دا دعا عمر بن الخطاب ﷺ ويلي ده او هغه خليفه راشد دی او دابهترينه دعاده څكه مدينه كې مرګ سبب دی دنجات دعذاب قبرنه ، په شرط ددې چې عقيده يې دقرآن او سنت په تله برابره وي.

# دجنازې دمونځ دعاګانې

دجنازې مونځ نه مقصد هم دعا ده ددې وجې مړی محتاج دی دعاګانو ته نو په جنازه کې هر هغه دعا چې په احادیثو کې راغلې وي ویل یې سنت دی، رسول الله ﷺ فرمايي: إذا صَليْتُمْ عَلَى الْمَيتِ فَاَخْلِصُوا لَهُ الدعاء (صحيح – اخرجه ابود اؤد ٣١٩٩ – وابن ماجه ١٤٩٧ – وابن حبان ٧٥٤ والبيهقي جـ٤ صـ٤٠ والمشكاة ١٦٧٤).

یعني کله چې تاسو په مړي مونځ دجنازې کوي نو هغه لره په اخلاص دعا کويئ – نو بهتره او داخلاص دعاګانې هغه دی چې رسول الله ﷺ نه ثابت وي هغه ویل په کار دی چې آهمې یې دادی.

**١٢١ – اَللهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِه وَاعْفُ عَنْهُ وَاَكْرِمْ نُزُلَهُ وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاء وَالثَّلْجِ وَالْبَردوَنَقِّه منَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوبَ الاَبْيَضَ منَ الدَّنَس وَاَبْدلْهُ دَاراً خَيْراً منْ دَارِه وَاَهْلاً خَيْراً منْ اَهْله وَزَوْجاً خَيْراً منْ زَوْجِه وَاَدْخلْهُ الْجَنةَ وَاَعِذْهُ منَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ.** (مسلم ٩٦٣).

**ترجمه**: يا الله تعالى ببښنه وکړي ده ته رحم پرې وکړه معافي ورته وکړه او ښه میلمستیا ورته وکړه او ځای ورته پراخه کړه ، دی ووینځه په اوبو او په واوره او په ګلۍ باندې او دګناهونو نه یې پاک که لکه چې تا سپینه جامه دخیرې نه پاکه کړې ده او ورکړې ده لره په بدل کې کور غوره دکورده نه (په دنیا کې) او ورکړه اهل غوره (په آخرت کې) داهل دده نه او ورکړه غوره ښځه (په آخرت کې) د ښځې دده نه ، او جنت ته یې داخل کړې او دعذاب قبرنه یې وساته او دعذاب د أورنه یې هم وساته.

**وضاحت**: عوف بن مالک ﷺ وايي رسول الله ﷺ په يوه جنازه مونځ کولو نوماترينه دغه دعا واوريدله.

**۱۲۲ - اَللهُمَّ اغْفرْ لحَيِّنَاوَمَيِّتنَا وَصَغيْرِنَا وَكَبِيْرِنَا وَذَكَرِنَا وَاُنْثَانَا وَشَاهدنَا وَغَائبنَا ، اَللهُمَّ مَنْ اَحْيَيْتَهُ منَّا فَاَحْيِيه عَلَى الاسْلَامِ وَمَنْ تَوَفيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الايْمَانِ ، اَللَهُمَّ لَاتَحْرِمْنَا اَجْرَهُ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ.**

(صحيح – اخرجه ابوداؤد ۳۲۰۱ والترمذي ۱۰۲٤ والبيهقي جـ٤ صـ٤۱ والحاكم جـ۱ صـ۳۵۸ والنسائي في عمل اليوم والليلة وفي السنن ۱۰۸۰ – وابن ماجه ۱٤۹۸).

**ترجمه**: يا الله تعالى ته زمونږ ژوندي او مړي وُبښې – او وبښې حاضرين او غائبين زمونږ واړه او غټان زمونږ – نارينه او زنانه زمونږ – ياالله څوک چې ته ژوندي ساتي زمونږ نه نو په اسلام يې ژوندي وساته او څوک چې ته زمونږ وژني نو په ايمان ورلره مرګ ورکړه – ياالله ته ددې مړي د اجر نه مونږ مه محروموه او دده نه روسته مونږ په فتنه کې مه اچوه.

**۱۲۳ - اَللّهُمَّ اَنْتَ رَبُّها وَاَنْتَ خَلَقْتَهَا وَاَنْتَ هَدَيْتَهَا للاسْلامِ وَاَنْتَ قَبَضْتَ رُوْحَهَا وَاَنْتَ اَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا جِئْنَاكَ (جِئْنَا) شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ.**

(حسن اخرجه ابوداؤد ۳۲۰۰ والنسائي في اليوم والليلة ۱۰۷۸ والطبراني في الدعاء – كما في الفتوحات لابن علان جـ٤ صـ۱۷٦).

**ترجمه**: اى الله تعالى ته ددې نفس رب يې او تاپيداکړى دى او تا ده ته داسلام هدايت کړي دى او تا دده روح قبض کړو، او ته دده په پټو او

ښکاره حالاتو ډیر پوه یې – مونږ تاته دده دسفارش کولو دپاره راغلي یو نو ده ته ښښنه وکړه.

**۱۲۴ – اَللهُمَّ اِنَّ فُلانَ ابْنَ فُلانٍ فِي ذِمَّتِکَ وَحَبْلِ جِوَارِکَ فَقِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ وَاَنْتَ اَهْلُ الْوَفَاءِ والحَقِّ وَالْحَمْدِ اَللّهُمَّ فَاغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ اِنَّکَ اَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِیْمُ.**

(حدیث حسن اخرجه ابوداؤد ۳۲۰۲ وابن ماجة ۱٤۹۹).

**ترجمه**: ای الله تعالی بیشکه فلاني دفلاني ځوي ستا په ذمه کې دی او ستا په ګاونډ کې دی. وساته هغه دعذاب دقبر او عذاب دأور نه او ته اهل دوفاء او حق یې - پس ښښنه وکړه ده ته او رحم وکړه په ده باندې یقیناً ته بخونکي او مهربان ذات یې.

**وضاحت**: واثله بن الاسقع ﷺ وایې: رسول الله ﷺ زمونږ سره په یو جنازه دمسلمان دمسلمانانونه مونځ کولو نو ماترینه دغه دعا واوریدله. د دې نه معلومه شوه چې دا دعا هم په زوره ویلي ده ځکه چې که په جهر نه شي نو بیا به یې صحابه کرام کله واورئ.؟

**۱۲۵ – اَللهُمَّ عَبْدُکَ وَابْنُ اَمَتِکَ احْتَاجَ اِلَی رَحْمَتِکَ وَاَنْتَ غَنِيٌ عَنْ عَذَابِهِ اِنْ کَانَ مُحْسِنًا فَزِدْ فِي اِحْسَانِهِ وَاِنْ کَانَ مُسِیْئًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ.**

(صحیح – اخرجه الحاکم في المستدرک ج۱ ص۳۵۹ رقم ۱۳۲۸ وصححه قال الذهبي (رح) في التلخیص اسناده صحیح) اهـ.

**ترجمه**: ای الله ستابنده او ستا دوینځي ځوي دی ستا رحمت ته محتاج دی او ته بي پرواه یې دده دعذاب نه که نیک وي نو نیکي یې نوري هم ډیرې کړه او ګنهګار وي دنو درګذر ترینه وکړه.

**وضاحت**: یزید بن رکانة ﷺ وایې: رسول الله ﷺ چې به کله جنازې ته ودریدلو نو دغه دعا به یې ویله.

**١٢٢ - اَللهُمَّ اغْفرْ لِهَذهِ النفْسِ الحَنيفيَّة الْمُسْلمَة وَاجْعَلْهَا منَ الذيْنَ تَابوُا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَک وَقِهَا عَذَابَ الْجَحيمِ.**

(مصنف ابن ابي شيبة جـ٣ صـ٢٩٤ رقم ١١٣٦٦ - صحيح موقوف على حبيب بن مسلمة ﷺ).

**ترجمه**: ای الله دی مسلمان موحد نفس ته بښنه وکړي او داپه هغه خلکو کې وګرځوي چې توبه یې ویستلي وي او ستا په لاره روان وې او دی دجهنم دعذاب نه وساتي.

**وضاحت**: داهم دجنازې دعا ده.

**فائده**: دمړی دپاره څه خاص مقرر شوي دعا نشته بلکه کومه چې مړي ته په کې دعا وي نو ویل یې جائزدی.

(ابن ابن شيبة ١١٣٧ عن سعد بن المسيب والشعبي ١١٣٧١ عن محمد بن سيرين ).

دعبد الله بن سلام ﷺ اوتابعینو اقوالوته چې وکتل شي نو معلومه شوه چې په جنازه کې ډیرې دعاګانې هم جمع کولي شي.

# دجنازې مسنون طريقه

١ – اودس به وکړي ځکه جنازه هم مونځ دی او رسول الله ﷺ وايې چې بغير داودس نه مونځ نه کيږي. (مسلم ٥٣٥ – والبخاري ٦٢٥١).

٢ – دجنازې مونځ هم هغه شرطونه غواړي کوم چې عام مونځونه يې غواړي ځکه رسول الله ﷺ وايې صلوا كما رايتُمُوني أُصلي.

(صحيح البخاري ٦٣١) وموسوعة الاجماع جـ٢ صـ٧٠٤

دجنازې مونځ په جهر هم سنت دی.

(سنن النسائي ١٩٨٩ – او په پټه هم جائز دی (منتقى لابن جارود ٥٤٠)

٣ – قبلې ته به مخامخ ودريږي. (صحيح البخاري ٦٢٥١).

۴ – بيا به الله اكبر ووايې. (ابن جارود ٥٤٠ ، والمصنف لعبد الرزاق ٦٤٢٨).

په خوله په زوره دجنازې نيت ويل بدعت دی بلکه نيت دزړه قصد او ارادی ته وايې.

۵ – دهر تكبير سره رفع اليدين هم ثابت دی – ابن عمر رضي الله عنه به دجنازې دهر تكبير سره رفع اليدين كول.

(مصنف ابن ابي شيبة رقم ١١٣٨٠ – درسول الله ﷺ نه هم په جنازې کې دهر تكبير سره رفع اليدين ثابت دی (العلل للدارقطني جـ٣ صـ٢٢ رقم ٢٩٠٨).

٦ – لاسونه به په سينه دپاسه كيږدی.

(مسند احمد جـ٥ صـ٢٢٦ رقم ٢٢٣١٣ وابن الجوزي في التحقيق رقم ٤٧٧)

٧ – أعوذُبِاللهِ السّميعِ الْعَليمِ مِنَ الشَّيطَانِ الرّجِيمِ مِنْ هَمْزِه وَنَفْخه وَنَفْثه. (ابوداؤد ٧٧٥)

٨ – بِسم الله الرحمن الرحيم به ووايې.

(سنن النسائي ٩٠٦ وصحيح ابن خُزيمة ٤٩٩ وابن حبان ١٧٩٧ والحاكم جـ١ صـ٢٣٢).

۹ – بیابه سورت فاتحه ووایې.
(صحيح البخاري ١٣٣٥ ومصنف عبدالرزاق رقم ٦٤٢٨ وابن الجارود ٥٤٠).

**فائده**: داچه څوک وایې چې فاتحه ویل په نیت د دعا سره ده خطادی علماء احناف په دی خبره ردکړي دی.
۱۰ – بیابه امین په جهر ووایې که جنازه یې په جهر کوله اویا په پټه که په پټه یې جنازه کوله (النسائي ٩٠٦ وابن حبان ١٨٠٥ وسنده صحيح).
۱۱ – بیابه بسم الله الرحمن الرحیم دسورت نه مخکي ووایې.
(مسلم ٤٠٠ – الشافعي في الام جـ١ صـ١٠٨ وصححه الحاكم على شرط مسلم جـ٢ صـ٢٣٣ ووافقه الذهبي (رح)
۱۲ – بیابه یو سورت ووایې.
(سنن النسائي جـ٤ صـ٧٤ – ٧٥ رقم ١٩٨٩ وسنده صحيح).
۱۳ – بیابه تکبیر ووایې او رفع الیدین دی وکړي.
(صحيح البخاري ١٣٣٤ ومسلم ٩٥٢ – ابن ابي شيبة رقم ١١٣٨٠ وسنده صحيح عن ابن عمر رضي الله عنه).
د ابن عمر رضي الله عنه - مکحول رحمه الله – الزهري – قیس بن ابي حازم – نافع بن جُبیر – حسن بصري رحمه الله نه په جنازه کې رفع الیدین ثابت دی.
۱۴ – بیابه ورپسي درود ابراهیمي کوم چې په عامو مونځونو کې ویل کیږي ووایې.
(مصنف عبد الرزاق رقم ٦٤٢٨) (صحيح البخاري ٣٣٧٠ والبيهقي في السنن الكُبرى جـ٢ صـ١٤٨ رقم ٢٨٥٦).
۱۵ – چې کله درود وویل شي نو تکبیر به وکړي شي او رفع الیدین به وکړي (مصنف ابن ابي شيبة جـ٣ صـ٢٩٦ رقم ١١٣٨٠).

۱۲ – ددې نه به روسته ذکر شوي دعاګانې ولوستل شي.
(مصنف عبدالرزاق رقم ٦٤٢٨ وابن حبان ٧٥٤ – الموارد وابوداؤد ٣١٩٩ – وسنده حسن).
دعاءمړي ته په جنازه کې د دريم تکبير نه روسته کول په کار دی.
(ابن ماجة ١٤٩٧).
دجنازې نه بعد دعا کول بدعت دی.
۱۷ – چې کله دعاګانې مړي ته وکړي شي نو څلورم تکبير به وويل شي.
(صحيح البخاري ١٣٣٤ ومسلم ٩٥٢).
۱۸ – بيا به صرف ښي طرفته يو سلام واړوي.
( مصنف ابن ابي شيبة جـ٣ صـ٣٠٧ رقم ١١٤٩ دعبدالرزاق جـ٣ صـ٤٨٩ رقم ٦٤٢٨ – عن ابن عمر ﵁ من فعله وسنده صحيح).

**فائده**: جنازه کې دواړه طرفته سلام ګرځول درسول الله ﷺ او دهغه دصحابه کرام نه ثابت نه دی ، البته شيخ الألباني (ر حمه الله) دالسنن الکبری دبيهقي جـ۴ صـ۴۳ نه دواړه طرفته سلام ګرځول نقل کړي خو دهغې سند ضعيف دی - يوپکي حماد بن ابي سليمان مختلط دی او دا روايت يې داختلاط نه مخکې نه دی بلکه بعد دی – دويم (۲) دغه حمادبن ابي سليمان مدلس هم دی او روايت يې دلته معنعن دی نو قبول نه دی (طبقات المدلسين رقم ۴۵).
بلکه عبدالله بن المبارک وايي چې کوم شخص په جنازه کې دواړو طرفته سلام ګرځوي هغه جاهل دی جاهل دی (مسائل ابي داؤد صـ۱۵۴) معلومه شوه چې صرف ښي طرفته سلام ګرځولي شي - داؤ دجنازې مختصر مسنون طريقه که ژوند باقي ؤ نو يورساله به ان شاء الله دی باره کې ليکم بتوفيق الله انه قريب مجيب.

**تنبیه**: دجنازې مونځ کې سورت فاتحه لوستل تقریباً ۱۴ آحادیثو کې ثابت دی راجع کتابنا التحقیقات في رد الهفوات) دجنازې په مونځ کې سبحانک اَللّهُمّ وبحمدک الخ ویل په هیڅ یو حدیث کې هم نه دی راغلي امام ابوداؤد دامام احمد نه پوښتنه وکړه چې دجنازې مونځ کې سبحانک اَللّهُمّ الخ شته هغه وویل دامي تراوسه نه دی اوریدلي (مسائل الامام احمد صـ۱۲۱ لابي داؤد).

## دتعزیت دعاګاني

داخبره یادساتل په کار دی چې کله رسول الله ﷺ ددنیا نه رحلت کولو نو دین یې مکمل پریښي دی ان تردی چې دبیت الخلاء دعاء دمسجد دعا دکور دعائي مونږ ته خودلي ده نو څنګه ترینه دمړي دتعزي دعا او طریقه پاتې شوه؟ تعزیت دمړي کور والاته د صبر او استقامت تلقین کول دی خو دا صبر او تلقین ورکول به زمونږ په خوښه نه وي بلکه دا درسول الله ﷺ په احادیثو کې مونږ ته ذکر شوي دی په تعزیه کې چیرته هم لاس اوچتول درسول الله ﷺ نه او نه دصحابه کرامو نه ثابت نه دی ۰ البته مبتدعین دصحیح البخاري په روایت استدلال کوي وایې چې رسول الله ﷺ دمړي په تعزیه کې لاس اوچتول حالانکه رسول الله ﷺ خو دډیرو صحابه کرامو اوصحابیاتو تعزئي کړي دی معلومه شوه چې لاس اوچتول په تعزیه کې بدعت دی. دتعزیه دعاګانې لاندې ذکر کیږي.

**۱۲۷ – انّ لله مَا اَخَذَ وَلَهُ مَا اَعْطى وَكُلٌّ شَيءِ عِنْدَهُ بِاَجَلِ مّسَمى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ.**

(صحيح البخاري ١٢٨٤ ومسلم ٩٤٣ والمشكاة ١٧٢٣).

**ترجمه**: دالله تعالی دپاره دی هغه څه چې یې واخستو او دهغه دی هغه څه چې ورکوي او هرشي هغه سره په یوه نیټه مقرره دی پس صبر دی کوي او دامصیبت دی ثواب ګڼي.

**وضاحت**: داهم دتعزئي دعا ده چې همداویل په کار دی ځکه چې داپه صحیحینو کې راغلي دی.

١٢٨ – **اَعْظَمَ اللّٰهُ اَجْرَکَ وَاَحْسَنَ عَزَائَکَ وَغَفَرَ لِمَيِّتِکَ.**

(الاذکار ص١٥٦).

**ترجمه**: الله تعالی دی ستا آجر لوي کړي او ښه دی کړي صبر ستا او ستا مړي ته دی الله تعالی بخښنه وکړي.

**وضاحت**: امام نووي (رح) وایې چې که په تعزیه کې کوم الفاظ چې دلالت کوي په صبر او دعا سره مړي ته نو ویل یې په کار دی کوم ممانعت پکي نشته - لکن حافظ بن حجر(رح) وایې چې ابن ابي شیبة کې دابن عمر رضي الله عنه او ابن الزبیر دتعزئي الفاظ داسې ؤ: اعقبک منه عقبی صالحة کما عقب عباده الصالحین - وسنده حسن – (الفتوحات ج۴ ص۱۴۳) ددې نه هم معلومه شوه چې تعزیه کې په کوم لفظ سره کیدي شي جائز وې خو مسنون الفاظ هغه چې صحیح البخاري او مسلم کې ذکر دي.

## مړی به څنګه قبرکې سپاري؟

١٢٩ –**بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ.**

(حدیث حسن – اخرجه ابوداؤد ٣٢١٣ والترمذي ١٠٤٦ والبیهقي ج٤ ص٥٥ وصححه ابن حبان والحاکم ووافقه الذهبي (رح).

**ترجمه**: په نوم دالله تعالى دى ، دې قبر کې ږدم او په طريقه يادين درسول الله ﷺ باندې ).

**وضاحت**: عبدالله بن عمر رضي الله عنه وايې: رسول الله ﷺ چې به کله يو مړى په قبر کې ايښودلو نودغه کلمات به يې ويل: ددې حديث نه معلومه شوه چې دمړي دسپارلو وخت کې قرآن لوستل يا نوري دعاګانې چيرته په صحيح احاديثو کې نه دي ثابت نو ځان ترينه ساتل په کار دى.

١٧٠ – **بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ.**

(صحيح : اخرجه ابن ماجه ١٥٥٠ والحاكم ١٣٥٢ وصححه الحاكم ووافقه الذهبي (رح)

**ترجمه**: په نوم دالله تعالى دى ږدم او په ملت درسول الله ﷺ باندې).

**وضاحت**: ابن عمر رضي الله عنه وايې : رسول الله ﷺ فرمايې کله چې تاسو مړي په قبرونو کې ږدى نو ووايې بسم الله وعلى ملة رسول الله (ﷺ)

**تنبيه**: صاحب دمستند اذکارو صـ١٢٨ کې دا دعا ذکر کړي حواله يې دابوداؤد ٣٢١٣ ورکړيده لکن ابوداؤد کې هماغه اولنۍ دعا ذکر ده ، بسم الله وعلى سنة رسول لله - او دا دويمه دعا صرف په المستدرک او ابن ماجة کې ذکر ده لهذا دا د صاحب وهم دى.

## چې کله مړى دفن شي نو دقبر دپاسه به کومه دعا کوي او لاس به هم اچتوي

١٧١ – دمړي دپاره به بخښنه غواړي او دثبات او استقامت سوال به ورلره دالله تعالى نه کوي عثمان بن عفان رضي الله عنه فرمايې: رسول الله ﷺ چې به کله

دمړي ددفن نه فارغ شو نو په قبر به ورته ودريدلو او وبه يې ويل خپل ورور لره ښننه وغواړئ او سوال وكړي دالله تعالى نه ده دپاره دكلكوالي ځكه دده نه اوس پوښتنه كيدي شي (ابوداؤد ٣٢٢١ وهو حديث صحيح) والحاكم ١٣٧٢ وصححه ووافقه الذهبي (رح).

**فائده**: دمړي سر او خپوته قرآن لوستل دسورت بقري اول او آخر دا بدعت دى امام ابو حنيفه (رح) او احمد ورته حرام وايي او دانه چيرته صحيح حديث كې راغلي اوكوم روايت چې مشكاة والا ذكر كړي دى . طبراني په المعجم الكبير جـ٣ صـ٢٠٨ كې روايت كړي چې يحيى بن عبد الله بن الضحاک او البابلتي پكي دى. چې ضعيف او متروک دى او موقوف هم صحيح نه دى چې په موقوف كې عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج دى مجهول دى – اوګوره مشكوة رقم ١٧١٧ وحاشيته او دتحقيق دپاره زمونږ كتاب التحقيقات في رد الهفوات اوګوره.

## هديرى ته دقبرونو والا دملاقات دعاګاني

١٧٢ – السّلامُ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الدِّيَارِ منَ الْمُؤْمنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَانَّا انْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَا حِقُونَ نسْأَلُ اللّهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ.

(مسلم ٩٧٥ والنسائي جـ٤ صـ ٩٤ وفي عمل اليوم والليلة ١٠٩١ واحمد في المسند جـ٥ صـ٣٥٣ وابن ماجة ١٥٤٧).

**ترجمه**: سلامتيا دى وي په تاسو اى دكورونو والا مؤمنانو او مسلمانانو او كه دالله تعالى اراده وشي مونږ تاسو ته راتلونكي يو ، سوال كوم دالله تعالى نه دځانونو او ستاسو دپاره دعافيت.

**وضاحت**: بُریدةَ ﷺ فرمایي: رسول الله ﷺ به صحابه کرامو ته ددغه دعا تعلیم ورکولو چې دوی کله مقبرې ته ووځي نودغه دعابه وایې.

۱۷۳ - **السّلام علَیکُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمنِیْنَ اَنْتُمْ لَنَا فَرَطٌ وَانَا بِکُمْ لَاحِقُونَ اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا اَجرَهُمْ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُمْ.**

(صحیح – اخرجه ابن ماجة ۱۵٤٦ واخرجه مسلم ۹۷٤ دون قوله انتم لنا فرط اَللّٰهُمَّ لا تحرمنا – واخرجه احمد جـ٦ صـ۷۱ – قال الحافظ حدیث حسن – ( نتائج الافکار جـ٤ صـ۲۲۱).

**ترجمه**: سلامتیا دی وي په تاسو ای ددې کورونو اوسیدونکو مؤمنانو تاسو دمونږ نه مخکې تللي یاستې مرو بیشکه مونږ تاسو سره یوځای کیدونکي یو – یا الله تعالی مونږ د دې مړدګانو دثواب نه مه محرومو او ددوي نه روسته مونږ په فتنه کې مه اچوه.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها وایې دمانه رسول الله ﷺ غائب شولو نو چې ما وکتلو دی په بقیع (هدیره) کې ؤ او دغه دعائي ویله.

۱۷۴ - **السّلَامُ عَلَیکُم اَهْلَ الدِّیَارِ منَ المُؤْمنِینَ وَالْمُسْلمِینَ وَیَرْحَمُ اللّٰهُ الْمُسْتَقْدِمینَ مِنَّا وَالْمُستَأخِرِین وَاِنَّا اِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِکُمْ لَا حِقُونَ.** (مسلم ۹۷٤)

**ترجمه**: سلام دی وې د دې کورونو په اوسیدونکو مؤمنانو او مسلمانانو باندې – الله تعالی دی رحم وکړي په مخکني تلونکو ځمونږ نه او روسته تلونکو نه او یقیناً مونږ ضرور تاسو سره یوځای کیدونکي یو.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي ما درسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چې زه کله هديري ته لاړه شم دقبرونو دزيارت ته نو څه ووايم نو رسول الله ﷺ راته وويل وايه السلام عليکم ...الخ.

**فائده**: کله چې سړي مقبري ته لاړشي او مقبره په لاره کې وي نو دغه مذکوره دعاګانې به وايې چې کومه يوه خوښه شي او د دې نه معلومه شوه چې په هديره کې ددې دعاګانو نه نور څه درسول الله ﷺ نه ثابت نه دی لکه چې بعضي خلک ځان سره سورت ياسين يا قل هو الله أحد يا نور سورتونه وايې او قبرونووالاؤ ته يې ببښي يا سورت التکاثر وغيره وايې داټول بدعت دی دعائشي رضي الله عنها حديث پرې ښه دليل دی چې هغه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه کوي چې زه مقبري ته لاړه شم څه به وايم؟ نو رسول الله ﷺ ورته دغه دعا ښائي دا ورته نه وايې چې قل شريف يا ياسين شريف – يا بل سورت ووايه نه بلکه دغه دعاوايه او بس، معلومه شوه چې نور قرآن ويل يا درودونه يا دځان نه بل څه ويل بدعت او د رسول الله ﷺ دطريقي نه مخالف کار دی.

**فائده**: څوک چې مقبري ته ځي نو د دري (۳) خبرو دپاره به ځي لکه حديث دابوهُريره رضي الله عنه کې راځي رسول الله ﷺ فرمايي:تاسو دقبرونو ملاقات ته ځي ځکه دا تاسوته آخرت يادوي (مسلم ۹۷۶ – ابن ماجة ۱۵۶۹) او حديث دابن مسعود رضي الله عنه کې راځي رسول الله ﷺ فرمايي چې ما اول تاسو دزيارة القُبور نه منع کړي وئ نو اوس تاسو قبرونوته ځي ځکه دا دنيا نه بي رغبتي او آخرت سره محبت او شوق پيداکوي (ابن ماجة ۱۵۷۱ قال البُوصيري هذا اسناد حسن)

دمذکوره احادیثونه معلومه شوه چې مقصددزیارة القبور نه دغه دري(۳) خبري دی اوبس – دقبرنه طواف کول دهغي نه مدد غوښتل هغي ته اوازونه کول وغیره شرک وبدعت دی.

## دکافرو په مقبره چې تیریږي څه به وایې؟

### ۱۷۵ - أَبْشِرُوا بالنَّارِ.

(اسناده صحیح – اخرجه الضیاء المقدسي في الاحادیث المختارةه جـ۳ صـ۳۰٤ رقم ۱۰۰۵ والبزار – البحر الزخار ۱۰۸۹ – وصححه الألباني (رح) في الصحیحین جـ۱ صـ٥٦ رقم ۱۸ والبوصیري في مصباح الزجاجة جـ۲ صـ٤۳ واخرجه ابن السُني ٥۹٦ واسناده صحیح).

**ترجمه**:خوسحاله شي ای کفارو په اور دجهنم باندې.

**وضاحت**: عامر بن سعد ﷺ دخپل پلار نه روایت کوي وایې یوباندہ چې رسول الله ﷺ ته وویل ای رسول الله ﷺ ځما پلار به خپلولي ښه پالـله او دا دا نیک کارونه به یې کول هغه به چیرته وې ، رسول الله ﷺ ورته وویل هغه به په اور کې وي نو دغه بانډچي په دی خبره خفه شو بیائي وویل ای رسول الله ﷺ ستا پلا ر به چیرته وي – بیا ورته رسول الله ﷺ وویل : کله چې هم دکافر په قبرتیریږئ نو په اور سره خوشخبري ورکوه – سعد ﷺ فرمایې - بیا دغه اعرابي ایمان راوړ – اوویي ویل رسول الله ﷺ په ماډیر بوج اچولي دی زه دهیڅ کافر په قبر نه تیریږم مګر داور زیري ورکوم – (الحاوي للفتاوی جـ۲ صـ٤۳٥ للسیوطي والهیثمي في مجمع الزوائد جـ۱ صـ۱۱۷).

## دمصيبت زده ليدلو وخت کې دعا

۱۷۶ - اَلْحَمْدُ لله الذي عَافَانِي مِمّاابْتَلَاکَ بِهِ وَفَضَّلَنِيْ عَلَى كَثِيْرٍ مِّمَنْ خَلَقَ تَفْضِيْلاً.

(حسن – اخرجه ابن ماجة ۳۸۹۲ والترمذي ۳٤۳۱ وحسنه – والحديث حسن لا كمازعم صاحب الاذكار المستند صـ۱۳۵).

**ترجمه**: صفتونه دی هغه الله تعالى لره چې زه يې بچ ساتلي يم دهغه مصيبت او مرض نه چې ته يې پرې اخته کړي يې اوغوره کړي يم زه دډيرو خلکونه په غوره والي سره.

**وضاحت**: عمر بن الخطاب ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمائلي دی چاچه يو مصيبت زده وليدلو اودغه دعائي وويله نوددغه مصيبت نه به ورلره نجات الله تعالى ورکړي ترڅوچه ژوندي وي.

## دكفراو دشرك د وسوسي نه دبچ كيدلو دعا

۱۷۷ - هُوَ الَاوَّلُ وَ الآخِرُ وَ الظَّاهِرُ وَ الْبَاطِنُ وَهُوَ بِكلِ شِيءٍ عَلِيم.

(حديث حسن – اخرجه ابوداؤد ۵۱۱۰ – قال النووي سنده جيد واخرجه عبد بن حميد والطبراني وابن ابي حاتم باِسنادٍ صحيحة – (الفتوحات الربانية جـ٤ صـ۳۷ والاذكار للنووي رقم ۳۳٦).

**ترجمه**: دغه الله تعالى اول هم دی او آخر به هم وي ښکاره هم دی او پټ هم دی او هغه په هر شي پوه دی.

**وضاحت**: ابوزميل (رح) وايې:مادابن عباس ﷺ نه پوښتنه وکړه چې زه په زړه کې داسې شَيْ مومم چې قسم په الله تعالی چې هغه زه ويلي نشم نو ابن عباس ﷺ وويل چې په اسلام کې څه دشک وسوسه ده اوبيائي وخندل وئي ويل د دې وسوسي نه هيڅوک بچ نه دی تر دی چې الله تعالی دا آيت نازل کړو : فَإِن كُنتَ فِى شَكٍّ مِّمَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ فَسْـَٔلِ ٱلَّذِينَ يَقْرَءُونَ ٱلْكِتَـٰبَ مِن قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿٩٤﴾ يونس: ۹۴

بيائي ورته وويل که په زړه کې داسې څه ګرځيدل نو دغه الفاظ ووايه :هُوَ ٱلْأَوَّلُ وَٱلْـَٔاخِرُ وَٱلظَّـٰهِرُ وَٱلْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴿٣﴾ الحديد: ۳

**۱۷۸ – آمَنْتُ بِاللهِ وَرُسُلِه.**

(صحيح البخاري ۳۲۷٦ ومسلم ۱۳٥ وابوداؤد ٤۷۲۱ – ٤۷۲۲ والاذکار للنووي ۳۳۳).

**ترجمه**: ماپه الله تعالی ايمان راوړي دي او دهغه په رسولانو باندې هم.

**وضاحت**: ابوهُريرة ﷺ فرمايې رسول الله ﷺ وايې يو دتاسوته شيطان راشي او ورته ووايې چې دا فلاني شي چاپيداکړيدي دافلاني شي چا پيداکړي تر دې چې داهم ورته ووايې چې الله تعالی چاپيداکړي نو چې کله دی ته دا ورسيږي نو أعوذ بالله من الشيطان الرجيم ووايه او منع شه – او دغه الفاظ دی ووايې آمنتُ بالله ورسله.

## دقرض نه دخلاصون دعا

**۱۷۹ – اَللهُمَّ اکْفِنِي بِحَلَالِکَ عَنْ حَرَامِکَ وَاَغْنِنِي بِفَضْلِکَ عَن مَنْ سِوَاکَ.**

(حديث حسن اخرجه الترمذي طبع احمد شاكر ٣٥٦٣ والحاكم جـ١ صـ٥٣٨ قال الحافظ بن حجر(رح) حديث حسن غريب اخرجه الحاكم والترمذي وحسنه).

**ترجمه**: ياالله تعالی کافي شي ځما ستاپه حلالو دحرامو ستانه او غني کړي ما په خپله مهرباني سره دهغه چانه ستانه سوا دی).

**وضاحت**: علي ﷺ فرمايي يو مکاتب غلام ده ته راغي او وئي ويل زه دخپل ځان دازادولو دپيسي ورکولو نه عاجز يم ماسره مدد وکړه نو علي ﷺ ورته وويل تاته هغه کلمات ونه ښايم کوم چې ماته رسول الله ﷺ ښودلي دی کچيرته په تا باندې دصير د غره په اندازه قرض هم وي الله تعالی به يې خلاص کړي نو دغه کلمات يې ورته وښودل).

**فائده**:صاحب دمستند اذکار صـ١٣٢ کې دقرض دخلاصولويوه دعا ذکر کړيده (اَللّٰهُمّ اِنِّيْ أعوذ بِکَ مِنَ الهمِ وَالْحُزْنِ ...الخ (اخرجه ابوداؤد ١٥٥٥) لکن حديث ضعيف دی حافظ منذري وايې في اسناده غسان بن عوف وهو بصري وقد ضعف –) يعني سند کې غسان بن عوف دی چې ضعيف دی امام ذهبي (رح) وايې غسان بن عوف البصري ليس بالقوي–(المغني في الضعفاء رقم ٤٨٧٢) لهذا دصاحب خبره چې والحديث صحيح ليس بصحيح ده).

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ١٣٣ کې بله دعا دقرض نه دخلاصون ذکر کړي ده چې ډيره اوږده هم ده ( قُلِ ٱللَّهُمَّ مَٰلِكَ ٱلْمُلْكِ تُؤْتِي ٱلْمُلْكَ مَن تَشَآءُ وَتَنزِعُ ٱلْمُلْكَ مِمَّن تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَن تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَآءُ بِيَدِكَ ٱلْخَيْرُ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٦﴾ آل عمران: ٢٦

بيائي حواله په مجمع الزوائد ورکړي بيا وايې چې وسنده صحيح – يعني سندئي صحيح دی)

زه وايم امام هيثمي (رح) چې کله دا حديث ذکر کوي کوم چې الطبراني في الکبير جـ۲۰ صـ**۱۵۵** کې روايت کړي دی وايې وفي الرواية الاولی نصر بن مرزوق ولم اعرفه وبقية رجاله ثقات الا ان سعيد بن المسيب لم يسمع من معاذ وفي الرواية الثانية من لم اعرفه اهـ (مجمع الزوائد جـ۱۰ صـ۲۱۸ رقم ۱۷٤٤۱ – ۱۷٤٤۲).

يعني يو خوپکي مجهول راوي دی چې نصربن مرزوق دی بل منقطع هم دی چې سعيد بن المسيب سماع دمعاذ بن جبل ﷺ نه ثابت نه ده نو بيا په کوم اصل اوقاعده حديث صحيح شو آيا منقطع ضعيف هم صحيح کيدي شي؟ لهذا حديث نهايت ضعيف دی چې دصحت وجه يې بالکل چانه ده ذکر کړي.

## چې کله قرض واپس درکړي نو دا دعا ورته وکړه

۱۸۰ – بَارَکَ اللهُ لَکَ فِي اَهْلِکَ وَمَالِکَ.

(اسناده حسن اخرجه النسائي في المجتبى جـ۷ صـ۳۱٤ والکبرى ٦۲۸۰ وعمل اليوم والليلة ۳۰۰ وابن السُنى ۲۷۸ وابن قانع في معجم الصحابة جـ۲ صـ۹۵ وابن ماجة ۲٤۲٤ وابن ابي شيبة في مسنده جـ۲ صـ۱۱۸ واحمدجـ٤ صـ۳٦ واسنده حسن رجاله ثقات راجع عجالة الراغب جـ۱ صـ۳۳۲ رقم ۲۷۸).

**ترجمه**: الله تعالی دی ستا په اهل او مال کې برکت واچوي.

**وضاحت**: عبد الله بن ربيعة دخپل پلار نه روايت کوي چې ځما نه رسول الله ﷺ څلويښت زره قرض روپۍ اخستي وي چې کله هغه ته مال راغي نو ماته يې واپس راکړي نو دغه دعا يې راته وکړه

## چې کله دباران سوال کوي

باران دالله تعالى رحمت دی خو چې کله دغه رحمت بندشي نوشريعت يې ښائسته طريقه ذکر کړي چې ټول مؤمنان مسلمانان په عاجزۍ يو بيابان ته ووځي او دوتلو نه مخکې توبه تائب شي صدقات ورکړي او امام خلکوته داستغفار او توبې تلقين ورکړي او دغه دعادی ووايې.

۱۸۱ - ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿٢﴾ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٣﴾ مَـٰلِكِ يَوْمِ ٱلدِّينِ ﴿٤﴾ **لَا إله إلا الله يَفْعَلُ مَايُرِيْدُ - اَللهُمَّ اَنْتَ اللهُ لَا اِلهَ الا اَنْتَ - اَنْتَ الْغَنِيّ وَنَحْنُ الْفُقَرآءُ اَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ وَاجْعَلْ مَااَنْزَلْتَ عَلَيْنَا قُوَّةً وَبَلَاغاً اِلَى حِيْنٍ**.

(حديث حسن : اخرجه ابوداؤد ۱۱۷۳ وقال هذا حديث غريب اسناده جيد — اخرجه ايضاً ابوعوانة وابن حبان والحاكم جـ۱ صـ۳۲۹ رقم ۱۲۲۵ وصححه ووافقه الذهبي (رح) وصححه ابن السكن وحسنه الألباني (رح)).

**ترجمه**: ټول صفتونه داُولوهيت يو الله تعالى لره دی چې رب دټول مخلوقاتو دی عام مهربان او هميشه رحم کونکي دی ، دورځې دجزاء اختيار مند دی سوا د هغه نه بل حقدار دبندګۍ نشته ، کوي هغه څه چې وغواړي ، ياالله تعالى ته الله يې نشته حقدار دبندګۍ سِوا ستانه ته غني

يې او مونږ فقيران يو په مونږ باران راوُوره وه او هغه څه چې ته را وروي هغه اوګرځوه مونږ ته قوت ، اورسونکي مونږ لره يو مقرر وخت پوري.

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمايي: رسول الله ﷺ ته خلکو دباران شکايت وکړو چې باران نه کيدلو نو رسول الله ﷺ امر په منبر سره وکړو په عيدګاه کې او خلکو سره يې وعده ديوي معلومي ورځې وکړه نو رسول الله ﷺ هم راووتلو او خلک هم راووتل کله چې لمر راوختلو نو په منبر کيناستلو او حمد او ثنائې وويله بيائې وويل چې تاسو دباران دنه کيدلو شکايت کړې ؤ او الله تعالى امر کړې دی چې هغه ته دعا وکړې او هغه وعده کړې چې دعابه قبلوي بيائې دغه دعا وکړه – بيائې لاسونه په دعا کې دومره اوچت کړل چې دهغه مبارک دمخ رګونو سپنوالي ښکاره شو بيائې خلکوته شاواړه وله او څادر يې واړوه بيائې خلکوته مخ کړو او دمنبر نه راکوز شو او دوه رکعته مونځ داستسقاء يې وکړو په جمعي سره - نو الله تعالى وريځ راپيداکړه او آسمان کې بريښنا او ګړزار پيداشو بيا باران وشو دالله تعالى حکم تر دی چې مسجد نبوي ته نه ؤ رارسيدلي چې کندي رابهيدلي رسول الله ﷺ چې هر کله دخلکو منډي وليدلي کورونو ته نو رسول الله ﷺ وخندل تر دی چې غاښونه مبارک يې ښکاره شول نو بيائې وويل – اَشْهَدُاَن اللهَ عَلَى کُل شئٍ قَدِيْر واني عبد الله ورسوله.

**١٨٢ - اَللهُمَّ اسْقِنَا غَيْثاً مُغِيْثًا مَرِيْـئًا، مُرِيْعًانَافِعًا غَيْرَ ضَارِ عَاجِلاً غَيْرَ آجِلٍ.**

(صحيح اخرجه ابوداؤد ١١٦٩ وصححه الألباني (رح).

**ترجمه**: یا الله تعالی مونږ خړوب کړي  په داسې باران سره چې مدد کونکي وي مبارک وي دشنوګیاګانو پیداکونکي او سبب وي فائده مند وي ضرر ورکونکي نه وي جلتي سره کیدونکي وې او روسته کیدونکي نه وي).

**وضاحت**: جابر بن عبدالله ﷺ فرمایي: رسول الله ﷺ ته څه خلک په ژړا راغله چې باران نه کیږي نو رسول الله ﷺ دغه دعا ولوستله.

**۱۸۳ - اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَکَ وَبَهَائِمَکَ وَانْشُرْ رَحْمَتَکَ وَاَحْيِي بَلَدَکَ الْمَيِّت.**

(حسن – اخرجه ابوداؤد ۱۱۷۶).

**وضاحت**: عمروبن شعیب عن ابیه عن جده په حدیث کې راځي چې رسو ل الله ﷺ به کله دباران دعا کوله نو دغه دعابه یې ویله).

**۱۸۴ - اَللهُمَّ اسْقِنَا، اَللهُمَّ اسْقِنَا، اَللهُمَّ اسْقِنَا.**

(صحیح البخاري ۱۰۱۳).

**ترجمه**: ای الله تعالی مونږ خړوب کړي ، ای الله تعالی مونږ خړوب کړي ، ای الله تعالی مونږ خړوب کړي.

**وضاحت**: انس ﷺ وایې چې دجمعې ورځ وه او یو سړي مسجد ته داخل شو او منبر ته مخامخ ودریده اورسول الله ﷺ خطبه دجمعې کوله وئي ویل ای رسول الله ﷺ مالونه هلاک شول لاري قطع شوي دعا وغواړه چې الله تعالی په مونږ باندې باران وکړي نو رسول الله ﷺ لاسونه اوچت کړل او دغه دعائي وکړه.

۱۸۵ - اَللهُمَّ اَغِثْنَا ،اَللهُمَّ اَغِثْنَا، اَللهُمَّ اَغِثْنَا.

(صحيح البخاري ۱۰۱٤).

یاالله په مونږ باران وکړي ، یاالله په مونږ باران وکړي ، یاالله په مونږ باران وکړي.

**وضاحت**: مخکینۍ دعا او دا مذکوره دعا رسول الله ﷺ دهغه سړي دپاره کړي چې دجمعي په ورځ مسجد ته راغلي ؤ او درسول الله ﷺ نه یې دباران دعا طلب کړي ؤ.

## چې کله وریځ مخامخ راشي نو کومه دعابه وايې؟

۱۸٦ - اَللهُمَّ اِنَّا نَعُوذُ بِکَ مِنْ شَرِّ مَا اُرْسِلَ بِهِ.

(صحيح اخرجه ابن ماجة ۳۸۸۹ وصححه الألباني (رح).

**ترجمه**: یاالله مونږ پناه غواړو په تاسره دضرر دهغه شي نه چې داوریځ پري رالیږل شویده).

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمایي: رسول الله ﷺ چې به کله وریځ ولیدله چې داسمان په کناروبه راښکاره شوه نوهر هغه کار به یې پریښوده چې کوم کې به مصروف ؤ او مخ په قبله به شو او دغه دعابه یې ویله).

## کله چې باران شروع شي نو څه به ووايې؟

۱۸۷ - اَللهُمَّ صَيِّبًا نَّافِعًا. (صحيح البخاري ۱۰۳۲).

**ترجمه**: یاالله ډیر باران وکړي او فائده منديئ وګرځوي).

## دباران نه وروسته دعا

۱۸۷ – مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللهِ وَرَحْمَتِهِ.

(صحيح البخاري ۱۰۳۸ ومسلم ۷۱)

**ترجمه**: دالله تعالی په فضل او دهغه په رحمت په مونږ باران وشو.

**وضاحت**: زیدبن خالد الجُهني ﷛ وایې په حدیبیه کې مونږ ته رسول الله ﷺ دسحر مونځ کولو هر کله چې فارغ شو نو خلکوته یې مخ کړو اووئي ویل چې تاسو پوهیږي ستاسو رب څه ویلي دی – صحابه کرامو وویل الله تعالی او دهغه رسول پوهیږي رسول الله ﷺ وویل: الله تعالی وایې زما بنده ګان سباکوي چې بعض په ما ایمان لرونکي وي اوبعض کافران وې نو هر چې مؤمنان دی هغه دغه وایې مطرنا بفضل الله ورحمته – او هرچه کافران دی هغوي وایې په مونږ باران وشو دفلاني شي په وجه یا دفلاني شي په وجه.

## دباران د ودریدلو دعا

۱۸۹ – اَللهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا ، اَللهُمَّ عَلَى الآكَامِ والظِّرَابِ وَبُطُونِ الاودِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ.

(صحيح البخاري ۱۰۱۴ ومسلم ۸۹۷).

**ترجمه**: یاالله دغه باران زمونږ نه اخوا دیخوا اوکړي او په مونږئي مه کوه – ای الله تعالی په ډیرکو (غونډو) او کندو او دشنه کیدو په ځایونو او دونو بوټو کې دغه باران وکړه.

**وضاحت**: داهم دباران دودریدلو دپاره ویل کیږي کله چې باران خلک تنګ کړي.

## کله چې سخت باد راشي نو کومه دعابه وایې

١٩٠ - اَللهُمَّ اِنِّيْ اَسْأَلُکَ خَیْرَهَا وَخَیْرَمَا فِیْهَا وَخَیْرَ مَااُرْسِلَتْ بِهِ وَأعوذبِکَ مِنْ شرِهَا وَشرمَافِیْهَا وَشرمَا اُرْسِلَتْ بِهِ. (مسلم ٨٩٩)

**ترجمه**: یاالله زه سوال کوم تانه دخیر د دې باد او هغه خیر چې باد کې دی او هغه خیر چې داباد پرې رالیږل شویدي او پناه غواړم پتا سره دشر ددې نه او هغه شر نه چې په دې کې دي او هغه شر چې دا پرې رالیږل شویدي

**وضاحت**: عائشه رضي الله عنها فرمایې چې کله به باد راوالوت نو رسول الله ﷺ به دغه دعا لوستله.

١٩١ - اَللّهُمَّ اِنِّيْ اَسْأَلُکَ مِنْ خَیْرِ مَااُرْسِلَتْ بِهِ ، وَأعوذبِکَ مِنْ شرِ مَا اُرْسِلَتْ بِهِ.

(صحیح الأدب المفرد ٥٥٥ والصحیحة ٢٧٥٧)

**ترجمه**: یا الله زه سوال کوم تانه دخیر دهغه څه نه چې داپرې رالیږل شویدي او پناه غواړم دشر دهغه څه نه چې داباد پرې رالیږل شویدي).

**وضاحت**: انس ﷺ فرمایې چې کله به سخت باد راغي نو رسول الله ﷺ به دغه دعا لوستله.

١٩٢ - اَللهُمَّ لَا قحًا لَا عَقیْمًا.

(صحیح الادب المفرد ٥٥٢ والصحیحة ٢٠٥٨)

**ترجمه**: ای الله تعالی داباد دخیر نه ډک وګرځوي او شنډئي مه ګرځوي. داهم دتیز باد دعاده چې رسول الله ﷺ به دسخت باد په وخت کې کوله.

## آسمان کې دغراري په وخت کې دعا

۱۹۳ – سُبْحَانَ الذِي يُسبِّحُ الرَّعْدَ بِحَمْدِهِ وَالْمَلَائِكَةُ مَنْ خِيفَتِه.

(الموطاء جـ۲ صـ۹۹۲ – قال النووي بالاسناد الصحيح في الموطاء عن عبدالله بن الزبير انه كان إذا سمع الرعد ترک الحديث وقال ...الخ – الاذكار ٤٦٤ وصحيح الادب المفرد ٥٦٠ – انظر الفتوحات الربانية جـ٤ صـ٢٨٥).

**ترجمه**: پاکي ده هغه الله تعالی لره چې تسبیح وایې رعد ملائک سره دصفتونو دهغه نه او نور ملائک (یې هم تسبیح وایې) دهغه د یَرَي دوجي نه.

**وضاحت**: داحدیث موقوف دی عبدالله بن الزبیر رضي الله عنه چې به کله دآسمان غرار واوریدلو نو خبري کول به یې پریښودل اوبیابه یې دغه دعا ولوستله.

**فائده**: صاحب دمستند اذکارو صـ۱۴۳ دآسمان دغراري یوه دعا دترمذي په روایت ذکر کړي – اَللّٰهُمَّ لا تقتلنا بغضبک ولا تهلکنا ...الخ خو حدیث نهایت کمزوري دی الألباني (رح) په ضعیف الادب المفرد ۱۱۰ الضعیفة ۱۰۴۲ کې ذکر کړیدي – سند کې ابومطردی چې مجهول دی (المغني في الضعفاء ۷۷۳۲ -) امام ترمذي هم داحدیث ضعیف ګرځولي دی. اوګوره التقریب ۸۳۷۳)

# دسفر دعاګانې

## ۱۹۴ – اَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَکَ وَاَمَانَتَکَ وَخَوَاتِيْمَ عَمَلِکَ.

(حسن – اخرجه ابوداؤد ٢٦٠٠ والترمذي ٣٤٣٩ وابن ماجة ٢٨٢٦ واسناده حسن بشواهده (الفتوحات الربانية جـ٥ صـ١١٨ وصححه الترمذي) الاذكار ٥٢٤ – ٥٢٦).

**ترجمه**: سپارم الله تعالى ته ستا دين او ستا امانت او آخري عملونه ستا.

**وضاحت**: قزعة ﷺ وايې ماته ابن عمر ﷺ وويل تاسره الله پاماني وكړم لكه چې ماسره رسول الله ﷺ كړي وه نو بيا يې دغه دعا وويله.

## ۱۹۵ – اَسْتَوْدِعُكُمُ اللهُ الذِي لَا تَضِيْعُ وَدَائِعُهُ.

(اسناده حسن اخرجه النسائي في عمل اليوم والليلة ٣٥٢ واحمد جـ٢ صـ٤٠٣ وابن السُني ٥٠٦ والطبراني في الدعاء ٨٢٠ والمحاملي في الدعاء ٩٢ ومن طريقة الحافظ عبدالغني المقدسي في الترغيب في الدعاء ٢٥٥ \ ١٣١ وابن حجر في نتائج الافكار جـ٢ صـ١١٦ قال الحافظ هذا سند حسن وحسنه الألباني في الصحيحة جـ١ صـ٥١ رقم ١٦ وجـ٦ صـ١٠٣) راجع عجالة الراغب جـ٢ صـ٥٧٩).

**ترجمه**: تاسوسپارم هغه الله تعالى ته چې نه ضائع كيږي دهغه سره امانتونه.

**وضاحت**: موسى بن وردان وايې زه ابوهريره ﷺ ته راغلم چې دسفر، الله پاماني مي ترينه اخستله نو ابوهريره ﷺ وويل اى وراره تاته داسې شي ونه ښايم چې ماته رسول الله ﷺ دالله پامانۍ وخت كې خودلي ؤ ما وويل وښايه نو هغه دغه دعا راته وښودله).

## ۱۹۶ – زَوَّدَکَ اللهُ التَّقْوَى وَغَفَرَ ذَنْبَکَ وَيَسَّرَ لَکَ الْخَيْرَ حَيْثُمَا كُنْتَ.

(حسن – اخرجه الترمذي ٣٤٤٠ والحاكم جـ٢ صـ٩٧ قال الحافظ حديث حسن اخرجه الطبراني والخرائطي والمحاملي الاذكار ٥٢٨)

**ترجمه**: الله تعالى دى تاته تقوى توښه درکړي او معاف دى کړي ګناه ستا او اسان دى کړي تاته خير چيرته چې يې.

**وضاحت**: انس ﷺ فرمايي يو سړي رسول الله ﷺ ته راغي اووئي ويل زه دسفر اراده لرم څه توښه راکړه نو هغه ورته وويل چې زودک الله التقوى بيا دغه سړي وويل نو رهم زيات کړه نو رسول الله ﷺ ورته وويل و غفر ذنبک. بيا دغه سړي وويل نورئي هم زيات کړه نو رسول الله ﷺ ورته وويل ويسرلک الخير...الخ.

**١٩٧ – اَللّٰهُمَّ اطْوِ لَهُ البُعْدَ وَهَوِّنْ عَلَيْهِ السفَرَ.**

(حسن – الترمذي ٣٤٤٥)

**ترجمه**: اى الله تعالى لنډ کړه ده ته ته اوږودوالي دسفر اوده ته سفر اسان کړه).

**وضاحت**: ابوهُريره ﷺ فرمايي يو سړي رسول الله ﷺ ته وويل اى رسول الله ﷺ زما اراده ده چې سفر وکړم نو وصيت راته وکړه ، رسول الله ﷺ ورته وويل لازم ده په تا باندې تقوى اوداالله اكبر ويل په هر اوچت ځاے باندې ، هر كله چې دغه سړى واپس شو نو رسول الله ﷺ ورته دغه دعا وکړه : اَللّٰهُمَّ اطوله ...الخ

**فائده**: صاحب دمستند اذكارو صـ١٤٥ کې ددې دعا حواله په نسائي او ابن ماجة ورکړيده حالانكه ابن ماجة کې دغه دعا نشته صرف عليک

بتقوى الله والتكبير على كل شرف) الفاظ په ابن ماجة کې اوګوره ابن ماجة رقم ۲۷۷۱ – اودسنن النسائي په مجتبى کې دا دعا نشته داحواله صرف امام مباركفوري په تحفة الاحوذي کې ورکړیده خو حدیث په سنن الكبرى دنسائي رقم ۱۰۳۳۹ کې موجوددی خو والله اعلم چې دادعا پکې شته او کنه؟ لهذا صاحب هم دلته دتقلیدښکار شویدي. اوګوره تحفة الاحوذي جـ۲صـ۲۴۵۲ طبع دار الافكار الدولية).

## موټر یا سورلۍ ته دختلو دعاګانې

۱۹۸ –سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقۡرِنِينَ ﴿١٣﴾ وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ﴿١٤﴾ ﴾

الزخرف: ۱۳ – ۱٤(صحيح – اخرجه ابوداؤد ۲٦۰۲ والترمذي ۳٤٤۳ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۵۰۲ واحمد وابن حبان والحاكم ۱۰ الفتوحات الربانية جـ۵ صـ۱۲۵).

**ترجمه**: پاکي ده هغه ذات لره چې دا سورلۍ زمونږ تابع کړیده او نه یو مونږ دی لره تابع کونکي او یقیناً مونږ خپل رب ته واپس کیدونکي یو -)

**وضاحت**: علي ابن ربيعة وايي: علي ﷺ ته یوه سورلۍ راوستل شوه چې هغه پري سورشي هر کله چې هغه په رکاب ورلره خپه کیښوده نو بسم الله يې وویله – او هر کله چې په شائي برابر شو – بيائي دغه دعا وکړه - سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقۡرِنِينَ وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ بيا يي درې ځلي الحمد لله وويله – بيا يې درې ځلي الله اكبر وويل بيا يې سبحانک اني ظلمتُ نفسي فاغفرلي انه لايغفر الذنوب الا انت – بيائي وخندل نو چاورته وويل ای امير المؤمنين ولې دې وخندل نو هغه وويل ما رسول الله ﷺ ولیده چې داسې کارئي وکړو لکه چې ماوکړو او بيائي وخندل نو ما وویل

ای رسول الله ﷺ دځۀ نه دی وخندل هغه وویل : چې الله تعالی تعجب کوي دخپل بنده نه کله چې هغه ووایې اغفرلي ذنوبي - یاالله تعالی زما ګناه معاف کړه دی پوه دی په دی چې زما نه بل څوک ګناهونه نه شي معاف کولي.

## چې کله پورته خیژې او یا ښکته کوزیږې څه به وایې؟

**۱۹۹ - اوچت ځاے ته ختلوکي (الله اکبر) او چې کله کوزیږي (سبحان الله).**

(صحیح البخاري ۲۹۹۳ - ۲۹۹٤ والبغوي في شرح السنة ۱۳۵۰ وابن السُني ۱۵۷ والنسائي في الکبری ۸۸۲۵ وعمل الیوم واللیلة ۳٦٦ واحمد جـ۳ صـ۳۳۳ والمحاملي في الدعاء ۱٤۰ والدارمي جـ۲ صـ۲۸۸ وابن خُزیمة ۲۵٦۲ والبیهقي جـ۵ صـ۲۵۹)

**وضاحت**: جابر بن عبد الله ﷺ وایې مونږ چې به کله رسول الله ﷺ سره ؤ او په اوچت ځاے به ختلو نو الله اکبر به مو وویلو او چې دغره سرنه به کوزیدلو نو سُبحان الله به مو ویله.

## سورلۍ چې کله وخوئیږي

**۲۰۰ - بِسْمِ اللهِ.**

(صحیح - اخرجه ابوداؤد ٤۹۸۲ والنسائي في عمل الیوم واللیلة ۵۵۵ والطبراني في الکبیر جـ۱ صـ۱۹۳ = ۵۱٦ والدعاء ۱٦۹۹ - ۱۷۰۰ والضیاء المقدسي في الاحادیث المختارة جـ٤ صـ۱۹٦ - ۱٤۱۲ - والحاکم جـ٤ صـ۲۹۲ وابن السُني ۵۱۰ - والحدیث صحیح راجع عجالة الراغب جـ۲ صـ۵۸۳).

**وضاحت**: أُسامة بن عمیر ﷺ وایې زه درسول الله ﷺ سره شاته په سورلۍ ناست ؤم نو زمونږ اوښ اوخوئید نو ما وویل شیطانه هلاک شي نو رسول

الله ﷺ راته وویل داسې مه وایه ځکه په دې خبره شیطان بیا غټیږي او دا وایې چې داما په خپل زور سره او خویولو لکن دا وایه بسم الله - چې په دې سره شیطان دومره وړوکي کیږي لکه دمچ په اندازه.

## سفرته دروانیدو دعا

۲۰۱ - اَللهُمَّ نَسْأَلُکَ فِي سَفَرِنَا هَذَا البِرَّ وَالتَّقْوَى وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى، اَللهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا وَاطْوِ عَنَّابُعْدَهُ ، اَللهُمَّ اَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ وَالْخَلِيْفَةُ فِي الَاهْلِ ، اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ أعوذ بِکَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَكَآبَةِ الْمَنْظَرِ وَسُوءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ وَالَاهْلِ. (صحیح مسلم ۱۳٤۲)

**ترجمه**: یاالله مونږ تانه په دی سفر کې د نیکي او تقوی او هغه عمل چې ته پري راضي کیږي، ای الله تعالی دا سفر مونږ ته اسان کړي اولیري والي یې راته لنډ کړي، ای الله تعالی ته زمونږ ملګري یې په سفر کې او پاتې کیدونکي یې په کور زمونږ کې ، ای الله تعالی پناه غواړم پتا دسفر دتکلیف نه او خفګان دشکل نه او دبد واپس کیدونه په مال او اهل کې.

**وضاحت**: ابن عمر ﷺ به خپل شاګردانوته داتعلیم ورکولو چې رسول الله ﷺ به کله هم سفر ته تللو او په اوښ به برابر شو نو دري ځلي به یې الله اکبر وویلو بیابه یې سبحان الذي سخر لنا هذا الخ وویلو بیابه یې دغه مذکوره دعا وویله.

## دسفرنه واپس کیدو دعا

۲۰۲ –لَا إله إلا الله وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ ، لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُل شَيْ ء قَدِيْر – ((آئبُونَ تَائبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لرِبِّنَا حَامِدُوْنَ صَدَقَ اللّهُ وَعْدَهُ وَنَصرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الَاحْزَابَ وَحْدَهُ.

(مسلم ١٣٤٤ ، وصحيح البخاري ١٧٩٧).

**ترجمه**: واپس کیدونکي یو مونږ توبه کونکي یو مونږ عبادت کونکي یو مونږ سجده کونکي یو مونږ رب خپل ته ثنا ویونکي یو مونږ دخپل رب ، رشتني کړه الله تعالی خپله وعده او مدد یې وکړو دبنده خپل سره او شکست یې ورکړو ډلوته یوازې.

**وضاحت**:عبدالله بن عمر ﷛ وایې رسول الله ﷺ چې به کله جهاد نه یا دحج نه واپس شو نو دري ځلي به یې تکبیر وویلو او دغه دعا به یې وویله.

## دسفرنه د واپس کیدو او کورته داخلیدو وخت کې دعا

۲۰۳ – تَوْبًا لِربِّنَا أوبًا لَا يُغَادِرُ عَلَيْنَا حُوبًا.

(اسناده حسن – اخرجه ابن السُني ٥٣٢ وابويعلى في مسنده ٢٣٥٣ وابن حبان ٢٧١٦ وابن ابي شيبة في المصنف ٩٦٥٥ وعبدالله بن احمد في المسند جـ١ صـ٢٥٦ والطبراني في تهذيب الآثار ١٥٥\٩٣ مسند علي – واحمد جـ١ صـ٣٠٠ والطبراني في الكبير ١١٧٣٥ والدعاء ١١٩٣ والبيهقي جـ٥ صـ٢٥٠ والبزار في مسند – ٣١٢٧ – كشف – وحسنه الحافظ في نتائج الافكار وصححه الحاكم جـ١ صـ٤٨٨ والهيثمي في المجمع جـ١٠ صـ ١٣٠).

**ترجمه**: توبه وباسو خپل رب ته او ګرځو دهغه طرفته چې هغه پري نه ږدي په مونږ باندې ګناه).

**وضاحت**: عبدالله بن عباس ﵄ وايي: رسول الله ﷺ چې به کله دسفرنه راغي او کورته به داخلیدلو نو دغه دعا به يې ويله.

۲۰۴- اَللّٰهُمَّ رب السّموات السبْعِ وَمَا اَظْلَلْنَ وَرَب الاَرْضِينَ السّبْعِ وَمَا اَقْلَلْنَ وَرَب الشَّياطِيْنَ وَمَا اَضْلَلْنَ وَرَب الرِّيَاحِ وَمَا أَذَرَيْنَ اَسْأَلُکَ خَيْرَ هَذهِ الْقَرْيةِ وَخَيْرَ اَهْلِهَا وَخَيْرَ مَا فِيْهَا وَأَعوذ بِکَ مِنْ شَرِهَا وَشَرِّ اَهْلِهَا وَشَرِمَافِيْهَا.

(واسناده حسن ان شاء الله - وهو حديث صحيح = اخرجه ابن السُني ٥٢٥ وابن حبان ٢٧٥٠٩ احسان - والنسائي في المجتبى جـ٣ صـ٧٣ والسنن الكبرى ١٢٦٩ - ٨٨٢٧ وعمل اليوم والليلة ٣٦٨ — ٥٤٤ والبخاري في التاريخ الكبير جـ٦ صـ٤١٧ وابن خزيمة في صحيحه ٢٥٦٥ — والضياء في الاحاديث المختارة جـ٨ صـ٧١ والطبراني في الكبير ٧٢٩٩ وفي الدعاء ٨٣٨ وابن حجر في نتائج الافكار جـ٢ صـ١٨٤ والحاكم جـ١ صـ٤٤٦ والبيهقي جـ٢ صـ٢٥٢ — والحديث حسنه الحافظ في نتائج الافكار والهيثمي والذهبي (رح) - راجع عجالة الراغب جـ٢ صـ٥٩٦).

**ترجمه**: اى د اُوه اسمانونو ربه اورب دهغه څه چې داپري سوري کوي او رب د اوه ځمکو او دهغه څه چې داځمکي يې اوچتوي اورب دشيطانانو او دهغه څه چې دوى ګمراه کوي او رب دهواګانو او دهغه څه چې دوى الوزوي زه ستا نه د دې کلي خير غواړم او خير د دې داهل او هغه خير چې په دې کې دى او پناه غواړم په تادشر د دې کلي نه اودشر داهل او اوسيدونکو د دې نه او دهغه شر نه چې په دى کې دى.

**وضاحت**: صهيب ﷺ فرمايې رسول الله ﷺ چې به کله ديو کلي دننوتلو اراده وکړه نو چې کله به يې دغه کلي وليدلو نو دغه دعابه يې ويله.

## ددمه کيدو وخت کې دعا

### ۲۰۵ - أعوذ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّمَا خَلَقَ.

(اسناده صحيح – اخرجه ابن السُني ٥٢٩ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٥٦٠ والترمذي ٣٤٣٨ والبخاري في خلق افعال العباد ٤٤٤ والحافظ في نتائج الافكار جـ٢ صـ١٩٦ واحمد جـ٦ صـ٣٧٧ وابن خُزيمة ٢٥٦٦ والبيهقي جـ٥ صـ٢٥٣ والاسماء والصفات جـ١ صـ٤٧٢ – راجع عجالة الراغب جـ٢ صـ٦٠٠ رقم ٥٢٩).

**ترجمه**: پناه غواړم په کلمو دالله تعالی چې پوره دی دشر دمخلوق دهغه نه.

**وضاحت**: خولة بنت حکيم ﷺ وايې : څوک چې يو ځای کې دمه کوي او بيا دغه کلمات ووايې نو هيڅ شي به ورته ضرر ونه رسوي تر دی چې ددغه ځای نه لاړشي.

## دپرنجي دعا اودهغې جواب ورکول

### ۲۰۲ - اَلْحَمْدُ لله

دابه پرنجي والا وايې اوچه څوک يې واوري نو هغه به وايې **يَرْحَمُكَ اللهُ** بيا به بيرته پرنجي والا وايې **يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُم**.

(صحيح البخاري ٦٢٢٤ وابوداؤد ٥٠٣٣ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٢٣٢ – والاذكار ٦٧٦).

**يرحمک الله** - يعني الله تعالى دى په تا باندې رحم وکړي – **يهديکم الله ويصلح بالَکم**: الله تعالى دى تاسو ته هدايت وکړي او ستاسو حال دى الله تعالى ښه کړي.

**وضاحت**: ابو هريرة ﷺ وايي نبي ﷺ فرمايي کله چې يو دتاسو نه پرنجي وکړي نو الحمد لله دې ووايې او بيا دې دده ورور يا ملګري يرحمک الله ووايي او چې کله ده دا وويل نو بيرته دى پرنچي والا يهديکم الله ويصلح بالکم ووايې.

**۲۰۷ – اَلْحَمْدُ لله عَلَى كُلِّ حَالٍ.**

(صحيح اخرجه ابوداؤد ۵۰۳۳ وصححه النووي في الاذکار ۶۸۱).

**ترجمه**: الله تعالى لره صفتونه دکمال دى په هر حال کې.

**وضاحت**: ابوهريرة ﷺ درسول الله ﷺ نه روايت کوي وايي چې کله يو دتاسونه پرنجي وکړي نو دغه دعا دى ووايې.

## دکافردپرنجي جواب

**۲۰۸ – يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَ يُصْلِحُ بَالَكُمْ.**

(صحيح اخرجه ابوداؤد ۵۰۳۸ والترمذي ۲۷۳۹).

**ترجمه**: الله تعالى دى تاسوته هدايت وکړي او برابردى کړي حال ستاسو.

**وضاحت**: ابوموسى الاشعري ﷺ وايي: يهودو به درسول الله ﷺ په خواکي پرنجي کول دوجي دأُميد ساتلونه چې رسول الله ﷺ به دوى ته يرحمکم الله ووايي نو رسول الله ﷺ به ورته يهديکم الله ويصلح بالکم ويل.

**فائده**: كه څوک پرنجي وكړي او الحمدلله ووايې نو هغه ته جواب په كار دي او كه الحمد لله ونه وايې نو جواب به نه وركوي انس ﷺ فرمايې دوه كسانو درسول الله ﷺ په خوا كې پرنجي وكړو يوه الحمد لله وويلو نو جواب يې وركړو اما بل ونه ويلو نو دهغه جواب يې ورنه كړو رسول الله ﷺ ته وويل شول چې ديو جواب دی وركړه او دبل جواب دی ورنه كړو رسول الله ﷺ وويل ، دی يو الحمد لله وويله اودی بل ونه ويله نو ځكه مي جواب ورنه كړو (صحيح البخاري ٦٢٢١ ومسلم ٢٩٩١ والترمذي ٥٠٣٩).

## دچرګ ، سپي او خره داواز وخت كې دعا

**٢٠٩** - اَللهُمَّ انَّا نَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ.

(صحيح البخاري ٣٣٠٣ ومسلم ٢٧٧٩ وابوداؤد ٥١٠٢ وغيرهم).

**وضاحت**: ابوهريرة ﷺ درسول الله ﷺ نه روايت كوي وايې كله چې تاسو دچرګ اذان واورئ نو دالله تعالى نه درحمت سوال كوئ ځكه چې هغي ملائک ليدلي دې او كله چې دخره هَنګار واورئ أعوذبالله من الشيطان الرجيم وايې ځكه هغي شيطان ليدلي وي ، جابر بن عبدالله ﷺ وايې: كله چې تاسو دشپي دسپي اوازونه (غپا) واورئ او يا دخرو هنګار واورئ نو أعوذبالله ووايې ځكه داسپي اوخر هغه څهويني چې تاسو يې نه ويني).

**فائده**: زيد بن خالد ﷺ وايې رسول الله ﷺ فرمائلي دي تاسو چرګ ته بدمه وايې ځكه داچرګ خلک مونځ ته وينسوي (ابوداؤد **٥١٠١**).

# دیومجلس نه دپاڅیدو دعا

۲۱۰ – سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ اَشْهَدُاَنْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُکَ وَاَتُوْبُ اِلَیْکَ.

(صحيح – اخرجه الترمذي ۳۴۲۹ وقال حسن صحيح – والحاكم جـ۱ صـ۵۳۶ وصححه ووافقه الذهبي (رح) وابن حبان ۲۳۶۶ والنسائي في عمل اليوم والليلة ۲۹۷۰ وابن السُني ۴۴۷ وصححه الألباني في صحيح الجامع ۶۱۹۲).

**ترجمه**: یاالله پاکي ده تالره او ټول صفتونه دکمال تالره دی ګواهي کوم چې نشته حقدار دبنده ګۍ مګر ته یې بښنه غواړم ستانه او توبه کوم تاته.

**وضاحت**: ابوهریرة ﷺ فرمایې رسول الله ﷺ وایې: څوک چې په یو مجلس کې کیناستلو او په هغې زیاتې خبرې ډېرې شوې او مخکې دپاڅیدلو نه دغه دعا ووایې الله تعالی به ورته ددغه مجلس ټول ګناهونه معاف کړي او که مجلس نیک ؤ نو دعا به یې دمهر په شان شي.

۲۱۱ – اَللّٰهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِکَ مَا تَحُولُ بِهِ بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَعَاصِيکَ وَمِنْ طَاعَتِکَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهِ جَنَّتَکَ وَمِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مَصَائِبَ الدُّنْيا، اَللّٰهُمَّ مَتِّعنَا بِاَسْمَاعِنَا وَاَبْصَارِنَا وَقُوَّاتِنَا مَا اَحْيَيْتَنَا وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ منا وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلَى مَنْ ظَلَمَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى مَنْ عَادَانَا وَلا تَجْعَلْ مُصِيبَتَنَا فِي دِينِنَا وَلا تَجْعَلِ الدّنيا اَكْبَرَ هَمِّنَا وَلا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لا يَرْحَمُنَا.

(صحيح بطرقه – اخرجه ابن السُني ٤٤٧ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٤٠١ والطبراني في الدعاء ١٩١١ والترمذي ٣٤٩٧ وقال حسن والحاكم جـ١ صـ٥٢٨ وصححه ووفقه الذهبي والبغوي في شرح السنة ١٢٧٤ وعبدالغني المقدسي في الترغيب في الدعاء ١٠٩ وابن عساكر في تاريخ دمشق جـ١٥ صـ٢٥٦ – فالحديث صحيح بمجموع طرقه – راجع عجالة الراغب جـ٢ صـ٥٠٢).

**ترجمه**: اى الله تعالى تقسيم کړه مونږ لره ستا ديري نه دومره چې زمونږ او ستادنافرمانۍ په مينځ کې يوه پرده شي او مونږ ته دومره تابعداري ستا راکړي چې ته مونږ پري جنت ته داخل کړي او يقين دومره راکړي چې ددنيا مصيبتونه، ته مونږ ته دهغې په ذريعه اسان کړي ، يا الله تعالى مونږ ته په خپلو غوږونو فائده راکړي او په سترګواو قوتونو زمونږ ترڅو چې تا ژوندي اوساتلو ، او دا زمونږ روسته پاتې کړي (خاتمه يې همداسې کړي) او دظالمانو نه قصاص زمونږ ته وګرځوي او مونږ سره مدد وکړي دظالمانو مقابل کې ، او زمونږ په دين کې مصيبت مه راولي اومه ګرځوي دنيا زمونږ لوي مقصد (چې اخرت رانه پاتې شي) او نه دعلم انتها او هغه څوک په مونږ مه مسلط کوي چې بي رحمه وي.

**وضاحت**: عبد الله بن عمر ﷺ وايي: ډيرکرت به رسول الله ﷺ چې دخپل مجلس نه پاڅيدلو نو دخپلو ملګرو دپاره به يې دغه دعا کوله.

**فائده**: علامه مناوي فيض القدير کې ليکلي دي چې کله ديومجلس نه سړي پاڅيږي نو دالله تعالى ذکر او رسول الله ﷺ باندې دې ډير درود وايي او داپه هر ذکر حاصليږي خو اکمل او سنت ، سبحانک اَللّٰهُمَّ وبحمدک أشهدان لا اله الا انت الخ او بيا درود ابراهيمي په رسول الله ﷺ باندې اهـ (صحيح الاذکار صـ٣٢٦).

## چې کوم مجلس کې ناست یې نو استغفار ډیر وایه

## ۲۱۲ - رَبِّ اغْفِرْلِي وَتُبْ عَلَيَّ اِنَّکَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيم.

(اسناده صحيح: اخرجه الترمذي ٣٤٣٤ وابن ماجة ٣٨١٤ والنسائي في عمل اليوم والليلة ٤٥٨ وابن ابي شيبة في المصنف ٩٤٩ وعبد بن حميد في مسنده ٧٨٤ – منتخب – والبيهقي جـ١ صـ٣٦٢ في السنن – وابن حبان ٢٤٥٩ – موارد – وصححه الألباني في الصحيحة جـ٢ صـ٩٦ – ٥٥٦ وقال هذا اسناد صحيح على شرط الشيخين – واخرجه ابن السُني ٣٧١ – انظر عجالة الراغب جـ١ صـ٤٢٣

**ترجمه**: یاربه ماته ببښنه وکړه او رجوع وکړه په ما باندې په توبه ویستلو سره چې زه توبه وباسم یقیناً ته توبه قبلونکي او رحم کونکي یې).

**وضاحت**: عبدالله بن عمر ﷛ وایې مونږ به درسول الله ﷺ په مجلس کې چې هیڅ به یې لا ویلي نه ؤ دغه دعا سل (۱۰۰) ځلي شمارله – د دې نه معلومه شوه چې مجلس کې ضرور باید استغفار وکړي شي

## دنکاح کولو دعا

۲۱۳ – اِنَّ الْحَمْدَلله نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُبِالله مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَات اَعْمَالِنَا مَن يَّهْدِه اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ وَاَشْهَدُ اَن لَّا اِلهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ - يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴿١٠٢﴾ سورة آل عمران آیت ۱۰۲) يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفۡسٖ وَٰحِدَةٖ وَخَلَقَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا وَبَثَّ مِنۡهُمَا رِجَالٗا كَثِيرٗا وَنِسَآءٗۚ

